# څرک

اوولسم کال، لومړۍ پرليسي ۲۰امه ګڼه،
عقرب-قوس ۱۳۹۹ل، ربيع الأول-ربيع الثاني ۱۴۴۲هـ-ق، نومبر۲۰۲۰م


## فکر نه کوو چې نړۍ به نور د کابل رژيم
## د سولې ضد هڅو او جګړه مار سياست ته پرېږدي !



❖ هو! د سولې د ښمن رسوا شو!
❖ آيا د دوحې تړون له اسلامي شريعت مخالف دی؟
❖ د ټرمپ شکست او د جوبايډن نه دنړۍ تمه
❖ مافيای رسانه‌ای و ترور افکار

## له څرک سره د هيواد سياسي، جهادي او علمي څېرې په مرکو او غبرګونو کې

### ليکوال او تاريخپوه محترم عبدالستار حکمت :

که خارجي ملاتړ چاته نجات ورکولای شوای نو کابل رژيم سره امريکا، ناټو او ۴۱ هيوادونه په سر او مال ولاړ وو خو راسخې عقيدې او ولسي ځواک دا هرڅه مات او تس نس کړل.

### ليکوال او سياسي شناند محترم موسی فرهاد :

د ناټو د مشر څرګندونې د بل هدف لپاره دي، زه په دې متيقين يم چې ناټو به د امريکا له خروج وروسته د يوې شېبې لپاره هم په افغانستان کې پاتې نه شي، ځکه دا نه معقوله ده او نه د هغوی ګټې ايجابوي.

### ليکوال او اديب استاد لطف الله خير خواه:

مجاهدين د هغه چا فتوی نه مني، چې هغوی ان د بيت المقدس ننګه نه شي کولی! ! د مجاهدينو سر خلاص دی، چې د جهاد په اړه به مجاهد ملا فتوی ورکوي او معتبره به وي او مجاهد ملا يقينا داسې فتوی نه ورکوي، چې د جهاد اهداف ونګوي.

### د ننګرهار والي محترم ملا محمد عيسی اخند :

دکابل مزدور رژيم سرکال ډېره هڅه وکړه چې ننګرهار کې داعشي مليشې استخدام کړي خو د الله تعالی په نصرت يې مجاهدينو مخه ډب او شوم عزائم يې خنثی وګرځول.



# ځرک

علمي، فرهنګي، ټولنيزه اسلامي خپرونه

اوولسم کال، لومړی، پرلپسې۱۲۰مه ګڼه، عقرب-قوس
۱۳۹۹ل، ربيع الأول-ربيع الثاني۱۴۴۲هـ ق، نومبر۲۰۲۰م

امتياز :

دا متيازخاوند : داافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير : عبيد تنوير

ليکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حميد ، جميل مېړنی او افضل محمد تراب

ګڼون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۳۵۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۵۰۰ کلداري |
| امريکا : | ۷۰ ډالره |
| اروپا : | ۷۰ يورو |
| يوه ګڼه : | ۳۰ افغانۍ<br>۶۰ کلداري |

يادونه

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دی.

تخنيکي چارې: تخنيکي څانګه

پتې :

srak_111@yahoo.com

## لړليک





سرمقاله

# فکر نکوو چې نړۍ به نور د کابل رژیم

# د سولې ضد هڅو او جګړه مار سیاست ته پرېږدي !

که څه هم د بين الافغاني مذاکراتو د پيل په هوډ په ۲۱ ماديز طرزالعمل موافقه د سولې او تفاهم په لور يو مثبت ګام او پرمختګ دی؛ خو په طرزالعمل کې داسې څه نه وو، چې بايد زيات وخت يې نيولی وای. د اسلامي امارت مذاکراتي هيئت ټينګار درلود، چې ژر تر ژره بايد اصلي موضوع (مذاکراتي بهير) ته لار پرانيستل شي، مګر د مقابل ټيم لخوا د ځينو قصدي ستونزو له امله دا کار ځنډنی شو.

دا يو خواشينونکی حقيقت دی، چې د مذاکراتو له پيله د مقابل لوري د مذاکراتي هيئت ځينې لوړپوړي غړي په لوی لاس د مذاکراتي بهير د اخلال لپاره توظيف شوي وو، خو د اسلامي امارت وينبو استازو بيا هم فضا او ماحول دېته پرېښود، چې د کابل رژيم مغرضې څېرې اوبه خړې او مذاکرات يو مخ متوقف کړي.

کابل رژيم تمه لرله، چې د امريکا له ټاکنو او د سپينې ماڼۍ د واکمنو له تغير او تبديل سره به دوي ته يو وار بيا د ساه اېستلو فرصت برابر شي، د امريکا نوې اداره به د دوحې تړون ته په کمه سترګه وګوري او له افغنستان څخه د امريکايي ځواکونو د اېستلو پر موضوع به له سره غور وکړي او د ټاکنو د پايلو له څرګندېدو وروسته يې په څرګند ډول دغه غوښتنه هم وکړه؛ خو ددوي دا فکر ناسم و، د امريکا پاليسي جوړونکو ادارو کابل رژيم ته څرګنده کړه، چې د دوحې تړون امريکا او نړيوالې ټولنې لپاره ارزښتمن سند دی او په هېڅ قيمت يې له لاسه نه ورکوي.

هماغه و، چې کابل رژيم خپل فريبونه او کارشکن تدبيرونه شاته وغورځول او په قطر کې يې خپل مذاکراتي هيئت ته لارښوونه وکړه؛ چې هرڅومره ژر کيدلای شي، د خبرو طرزالعمل نهايي کړي.

د امريکا له متحده ايالتونو سره د اشغال د خاتمې د تاريخي تړون لاسليک او بيا د اعتماد جوړونې د پروسې د لومړيو شرطونو په پوره کېدو سره بين الافغاني مذاکراتو ته ننوتل او په خپلو وعدو عمل، د وسله والې مبارزې ترڅنګ د تفاهم اصل ته هم د اسلامي امارت ژمنتيا ښيي، برعکس امريکا او کابل رژيم ځلونه له خپلو کړو وعدو تخلف کړی او يا يې هم په پوره کولو کې ځنډ راوستی دی.

د اشغال د خاتمې د تړون په لاسليک او د بين الافغاني مذاکراتو د لومړيو پړاوونو په تکميل سره له هېواده د واردې شوې جګړې د ټغر ټولېدو ښه فرصت رامنځته شوی، چې بايد ضايع نشي.

په څه ډول چې د دوحې تړون افغانانو ته تاريخي بريا او ستر وياړ راوړ او د افغان ميړني ولس ټول ديني او ملي ارزښتونه پکې خوندي ګرځول شوي، تمه ده چې د بين الافغاني مذاکراتو په نتيجه کې به هم د افغانانو تل پاتې ارزو چې هغه وياړمنه سوله او د سوچه اسلامي نظام ټينګښت دی هغه هم ترلاسه او پوره وګرځي.

# هو! د سولې دښمن رسوا شو!

ارمان

څو ورځې د مخه په دوحه کې د روانو بین الافغاني مذاکراتو لپاره د «طرزالعمل» نهایي کېدو په اړه د امارت سیاسي دفتر وویل: بین الافغاني مذاکراتو لپاره «طرز العمل یا کړنلاره» د نومبر میاشتې پر پنځلسمه نېټه وروستی شوې او د دواړو مرکچي پلاوو لخوا پرې هوکړه شوې ده.

د افغانستان اسلامي امارت د سیاسي د فتر ویاند ښاغلي ډاکټر محمد نعیم وردگ پخپل ټویټر ولیکل:

د بین الافغاني مذاکراتي ټیمونو ترمنځ د «مذاکراتو لپاره طرز العمل» د روان ۲۰۲۰ زکال د نومبر په ۱۵مه نېټه باندې په ۲۱ مادو کې تکمیل او نهایي شوی دی.

خو د کابل اداري د مرکچي پلاوي ویاند «نادر نادري» پخپل ټویټر پاڼه ولیکل: تر اوسه طرز العمل وروستی شوی نه دی او یوازې د دواړو لوریو د مقدمې پرته په « ۲۱ ماده یې طرزالعمل » باندې توافق کړی دی.

هر څې خپلواک منابع دي هغوي هم منلي چې د بین الافغاني مذاکراتو لپاره «طرزالعمل یاکړنلاره» د دواړو خواو مذاکراتي ټیمونو لخوا بشپړه او نهایي شوې وه. هغوي زیاتوي د سپټمبر په ۱۲مه نېټه د بین الافغاني مذاکراتو د «پرانیست غونډې» نه شاوخوا ۱۵ ورځې وروسته په لومړنۍ غونډه کې د اجنډا ټاکلو په لړ کې هم تر ډېره مثبت پرمختګ شوی و او د امارت پلاوي لخوا د اختلافي نکاتو د حل او فصل کولو په باب وړاندیز کړی و، چې په اړه به یې «قرآن و سنت» ته رجوع کېږي؛ خو د قرآن و سنت په «شرح و تفسیر» کې د نظرونو د اختلاف په صورت کې به «حنفي فقه» د اعتبار وړ وي او هم په مقدمه کې به دا سپیناوی کېږي، چې روان مذاکرات به د «دوحې توافقنامې په اساس» پرمخ بیول کېږي، کابل نه د لاړ ټیم لخوا د مخالفت کوم غږ پورته شو، هغه به ټول ولس اورېدلی او ورڅخه خبر دی، چې دلته یې بیا معاد کېدل خبره طولاني کوي.

کله چې خبرې وځنډېدې، نو د کابل مذاکراتي ټیم په نورو «دفاعي تبلیغاتو» لاس پورې کړ، تردې دې پورې چې اشرف غني ددې لپاره چې نړیوال ځانته متوجه کړي؛ پخپل احساساتي غبرګون کې یې وویل: « د مذاکراتو اساس به قرآن و سنت وي» حال دا چې مقابل لوري لخوا په پیل کې دا وړاندیز شوی چې «اختلافي موضوعاتو د حل و فصل لپاره به قرآن وسنت ته رجوع کېږي او د قرآن و سنت په شرح و تفسیر کې د نظرونو د اختلاف په

صورت کې به اعتبار د حنفي فقهي تعبير او شرح لره وي» ځکه چې د افغانستان اسلامي امارت د قران و سنت علمبردار دی او هم يې د ټولو جهودو او قربانيو غرض وغايه قران و سنت تنفيذ دی.

د کابل مذاکراتي ټيم د مذاکراتو د تعطل او ځنډ نه په ناوړه ګټه اخيستو د نړۍ د بېلا بېلو اسلامي هېوادونو د علماوو د نظر پوښتلو هڅه وکړه، چې د زياترو هېوادونو د علماو لخوا ورته اعتناء ورنکړل شوه او د يو نيم هېواد د علماو نه پرته د اکثرو هېوادونو علماو لخوا سکوت غوره شو، خو دوي د هغه يو نيم هېواد د علماو نظرونه د علمي او فقهي فتواګانو په شکل کې رسنيو ته وسپارل او داسې تاثر يې ورکړ، چې ګواکې د «فلاني هېواد علماو د کابل رژيم پرضد جنګېدل حرام وبلل او د فلاني هېواد علماو د طالبانو او مجاهدينو جهاد نا مشروع وګاڼه» .

پر دې علاوه کابل رژيم بله هڅه دا وه او اوس هم ده، چې د مذاکراتو پروسه د ځنډ ښکار کړي او په دې فرصت کې دوي د نړيوالو څخه پوځي، مالي او سياسي مرستې ترلاسه کړي، بل د کابل رژيم ډېره تمه د امريکا دننه د ولسمشرۍ ټاکنو کې د «جوبايډن» بريالیتوب ته وه، که هغه د بري وروسته پرې مهربان شي او له افغانستانه د عسکرو وېستل وځنډوي، خو ښکاره ده چې نن سبا نړۍ کې د هېوادونو دننه د پالېسۍ يا تګلارو تغير و تبديل د اشخاصو په تغير و تبديل پورې اړه نلري، بلکې هر هيواد د خپلو ملي ګټو او مصالحو په خاطر سياسي کړنلارې او پالېسيانې جوړوي او هم هغو ته په کتو يې بدلوي هم! نو په امريکا کې د ټرمپ مقابل کې د بايډن برۍ هېڅکله په دې معنی ندی چې هغه به خامخا د امريکا په ملي تګلاره کوم ژور منفي اغيز ولري.

دا سمه ده چې د انتخاباتو د کمپاين په مهال بايډن ددې لپاره چې د خلکو پام ځانته کړي، د ټرمپ د تګلارې سخت ناقد و، خو معلومه ده؛ چې ټاکنيز شعارونه د يو هېواد د سياسي او ملي تګلارې لپاره کله هم اساس ګرځيدای نشي- خو افسوس! چې د کابل رژيم احمق چارواکي د «بايډن ټاکنيز شعارونه د امريکا په رسمي تګلاره کې د بدلون لپاره قطعي و يقيني وګڼل» او باور يې وکړ، چې د بايډن په بري سره به د مذاکراتو لړۍ بنده شي او امريکا به خپل ټول پام د جګړې شدت او د هغې په ترڅ کې د افغان ولس ټول وژنې ته وګرځوي او په دوي باندې يو ځل بيا د شنو ډالرو باران وشي، خو ښکاري چې دبري وروسته بايډن خپله لهجه تغير کړې او هغه هم غواړي چې ژر تر ژره روانه جګړه پای ته ورسېږي.

نو راځم؛ د هغه سر خبرې ته چې د مذاکراتو لپاره « طرزالعمل په ۲۱ مادو » کې د دواړو مذاکراتي ټيمونو لخوا منل شوی و.

ويل کېږي ؛ د نومبر په ۱۵مه نېټه د کابل مرکچي پلاوي څو مهم غړي لکه معصوم ستانکزی، سلام رحيمي، فوزيه کوفي او نور د امارت مرکچي پلاوي لخوا د شېراټن هوټل نه بهر يوې مېلمستيا ته وبلل شول او هلته د دواړو لوريو ترمنځ په طرزالعمل باندې د توافق راتللو وروسته په سبا ته يعنې د نومبر په ۱۶ نېټه بيا کېناستل او طرز العمل يې ټکی په ټکی په پښتو او دري کې په ګډه ناسته کې ولوسته او په ۲۱ مادو کې يې تکميل او تائيد کړ.

بي بي سي د طالبانو د سياسي دفتر د وياند له قوله ليکلي دي، چې د نومبر پر ۱۷مه نېټه د دواړو پلاوو لخوا د تائيد وروسته دواړو لوريو په ګډه د طرزالعمل يوه نسخه د کوربه هېواد (قطر) د بهرنيو چارو وزارت استازو ته و سپارله او هم پرې د دواړو خواو څخه په ټيټه کچه لاسليکونه وشول او په لوړه سطحه د لاسليکونو کولو لپاره د نومبر ۱۸مه نېټه وټاکل شوه، څو د يو لړ خاصو مراسمو په ترڅ کې په لوړه کچه لاسليکونه پرې وشي.

ليکن د يادې نېټې نه وړاندې د کابل مرکچي پلاوي لخوا د امارت پلاوي ته وويل شول « اشرف غني معصوم

ستانکزی کابل ته غوښتی دی، هغه ورځې او چې څنګه بېرته راستون شي؛ طرزالعمل به لاسلیک کړو» د امارت مرکچي پلاوي د معصوم ستانکزي ورتګ ته په تمه و، چې د رسنیو څخه یې خبر ترلاسه کړ چې «اشرف غني ستانکزی سخت رټلی دی، ان چې له دندې یې هم ګوښه کړی او طرز العمل یې رد کړی دی» .

دې لړکې د « هشت صبح» په نوم ورځپاڼې دعوه وکړه، چې د کابل نه تللي مرکچي پلاوي ( چې ځان د جمهوریت مذاکراتي پلاوی بولي) په دوه ټوټو وېشل شوی دی او اکثریت غړي یې ۲۱ ماده یي طرزالعمل تائیدوي او ځینې بیا چې د اشرف غني ډار لري، مخالفت یې کوي او هغه ( اشرف غني) په هېڅ صورت نغواړي چې په دوحه کې روان مذاکرات کوم واقعي او منطقي حل ته ورسېږي، هغه هڅه کوي چې وخت ته په دیکه ورکولو سره د خپل کرغېړن واک تر پایه د سولې او مذاکراتو بهیر وځنډوي او د افغانستان په سر له بهرنیانو سره د پټو او ښکاره معاملو کولو په ترڅ کې بهرنی ملاتړ ترلاسه کړي.

نو اوس په دې هر څوک باوري شوي دي، چې اشرف غني سوله نغواړي تردې چې نیویارک ټایمز هم پخپله تازه تبصره کې لیکلي دي: چې د کابل اداري مشر( اشرف غني) برملا د سولې په مخالفت کې ملاتړلې ده او په څرګنده د سولې په لور د هر پورته کېدونکي ګام سره مخالفت کوي.

نیویارک ټایمز زیاتوي: په دې کې نور شک پاته نه دی، چې اشرف غني د سولې او مذاکراتو د بري پر وړاندې خنډونه ایجادوي، چې له امله یې نه یواځې افغانان د سولې په اړه ناهیلي شوي ، بلکې هغه بهرني هېوادونه چې د یوې مودې راهیسې په سوله راوستو او د مذاکراتي بهیر په را منځته کولو کې فعال رول لري، هم یې ناهیلي کړي دي، ځکه اشرف غني هڅه کوي، څو د مختلفو هیلو او بهانو په موندلو سره د سولې لپاره کېدونکې هلې ځلې او کوښښونه وځنډوي، ولې هغه دېته هیله مند دی، چې د ټرمپ دورې په پای ته رسېدو او د بایډن دورې په راتلو به له افغانستانه د امریکایي ځواکونو وتل وځنډول شي.

همدا راز جوته شوې ده، چې امریکایانو اوس دا درک کړې ده، چې اشرف غني د سولې لپاره ښه نیت نلري،که څه هم هغوي د اشرف غني لخوا د وروستیو خنډونو اچولو په ارتباط رسماً څه نه دي ویلي؛ خو ښکاري داسې چې هغوي نور د اشرف غني څخه ستړي او ستومانه دي، چې یو دلیل یې د کابل نه په تللي مذاکراتي ټیم کې درز راتلل دي، چې ځینې د اشرف غني پلوي کوي او ځینې بیا د هغه نه ناهیلي او ستومان شوي دي.

د کتونکو په اند: خامخا په دې درز راوستو کې امریکا به رول ولري، ځکه ځینې غربي ډیپلوماتان غواړي، چې نور د اشرف غني پر ځای ډاکټر عبدالله ورمخته کړي او باور لري چې هغه د سولې پروسې د پرمخ بیولو صلاحیت لري او په تمه دي، چې عبدالله به په سوله کې د اشرف غني نه فعال نقش ولري.

حاصل دا چې اشرف غني سوله نغواړي! او د هغه د سولې دښمنه څېره هر چاته عیانه شوې، هر چا پیژندلې ده. دا چې د کابل نه تللی مذاکراتي ټیم ویشل شوی دی او مقابل کې یې د افغانستان اسلامي امارت سولییز دریځ نور هم ځلېدلی او د نړیوالو او افغانانو د باور او اعتماد مظهر ګرځېدلی دی، امارت چې د مذاکراتو په پیل کې کوم دریځ و مسیر غوره کړی و، نن هم الحمدلله په هم هغه دریځ و مسیر باندې روان دی او د یو اینچ په اندازه یې هم خپل مسیر تغیر کړی نه دی، دا ځکه چې د سولې لپاره صفا نیت او ریښتینې اراده لري او هر چې مخالف لوری دی هغه ځکه د ګډوډیو او پاشل کېدو ښکار دی، چې هغه د سولې لپاره له آراه! صفا نیت او ریښتینې اراده نه لري . پای



# د استرالیا په جنایاتو له اعتراف سره نور څه دي؟!!

صارم

د ورږي د میاشتې په (۱۲مه)نېټه په مطبوعاتوکې داخبر ښکته پورته شو چې استرلیا پـه افغانسـتان کې دخپلـو سـرتېرو ترسره کړي جنایات څېړي ورپسې په دغه هیوادکې دسرتېرو دځانوژنې راپوروونه هم خپاره شول، چې تـر دوو میاشـتو پـه کمه موده کې یې له همدغو سرتېرو څخه تر پنځوسو زیاتو فوځیانو ځانوژنه کړې .

واقعیتونه که هرڅومره ترخه هم وي پټ نه پاتې کیږي، داپه افغانستان کې داشغالګرو دانبار انبار وحشتونو اوظلمونـو یوائې لومړني خبرونه دي چې پـه خپـل وارسـره بـه پـه هـر اشـغالګر هیـوادکې سـر راپورتـه کـوي اوس چـې لـه اشـغاله دافغانستان خپلواکي رسمیت پیداکړ اوله طالب سره یې سند امضاء شو، نو ته لاګوره چې دو وخت په تېرېـدو سـره بـه د دوی څومره جنرالان او څېړونکي په خپلو یادښتونو او لیکونکوکتابونوکې  هغه پټ حقایق هم رابرسېره کـړي چـې لاهـم داشغال تر پاته اغېزو لاندې پټ پاته دي .

که رښتیا هم مطبوعات لکه څنګه یې چې دعوه ده همداسې آزاد، خپلواک اوبې طرفـه واي اوپـه رښـتیا هـم دبشـر دحقوقو مدافعین د دغو حقوقو پالونکي او مدافعین واي، له هماغه لومړي سره بـه یـې دا جنایتونـه رسـواکړي واي او پـه افغانستان کې دشلوکلونو په موده کې په مسلسل ډول د ترسره کېدونکو ظلمونو اووحشتونو په وړاندې به غبر پورتـه شـوی وای! که څه هم دبشریت په وړاندې د دغه مطبوعاتي او حقوقي خیانت اغېز به ترډېره پاته وي، خو وخـت بـه دمظلومـو ولسونو په مخ کې ظالمې اوجاني څېرې رسواکوي، هلته به بیا معلومه شي چې تروریزم څه ته وایي او څوک یـې پـالي ؟ اتلان څوک اوغلامان څوک دي ؟! په هیواد څوک مین اود هیواد دښمنان څـوک دي ؟ دچـا خبـره رښـتیا اودچـا دروغ ده؟!

نن استرلیایان یوائې دځلوېښتو تنو افغانانو په بې ګناه وژنه اعتراف کوي خو داسې وخت به هم راشي چې په ګناه! دوژل شویو افغانانوګناه ته به هیڅ توجیه پیدانه کړای نه شي !!

د دوی په کړو اعترافونو به زمونږ ټوله مدعا لکه څنګه چې حق وه ښه ترا حـق ثابتـه شـي او دوی بـه نـاحق اونـاروا وي، دلته ده چې زمونږ له هرې خبرې به ځمکني واقعیتونه پخپله دفاع کوي او اشغالګر خو څـه کـوې چـې پـه هـیڅ هـم راګډ نه دي ؛ تر هر چا زیات به هغه اجیرې څېرې ډېرې زهیرې وي چې په خپلو سترګو د دغو واقعیتونـو لـه لیـدلو  سـره سره یې دخپل ولس اوخپلې خاورې د دفاع پرځای دهماغو اشغالګرو په دفاع اوګټه قلمونه څرخول .

زمونږ ولس غریب او وروسته پاتې ولس دی، دلته په کلیو او بانډوکې د دنیا هیڅ پرمختللي وسایل نشته، دلته نه دبشري میډیاافراد شته اونه د انټرنیټ وسایل، دلته چې داشغالګرو وحشي عسکروکوم ظلمونه کړي، دنیا ترې ناخبره ده یوائې هغه اجیر عسکر ترې خبر دي چې د دوی په خدمت کې به په کلیو اوکوڅوکې ورسره ګرځېدل .

د دغو اشغالګرو هیوادو دجنایاتو اعتراف او رسواکېدنه به اوس د دوی بشریت پالنې مدعا هم ښه معلومه کړي او وبه کتل شي چې دغو جاني عسکرو ته کومه سزا ورکوي یوائې به یې له دندې ګوښه کړي اوکه رښتیا به هم د ابدي عمر قید سزا ورکړي ؟ وبه کتل شي چې د جنګي جرمونو نړیوال سازمانونه او د ملګرو ملتونو نړیواله ټولنه به اوس په دې اړه کوم قدم پورته کړي ؟

تېر ته په کتو په ډاډه زړه ویلای شو چې ډېر څه به ونه شي تر دې چې یوه نمایشي هڅه به هم ونه شي، همدا هغه څه دي چې دنړۍ په هرکونج کې دجبر او اسارت لاندې ازادۍ غوښتونکي تحریکونه دېته اړکوي چې خپل شعارونه تر نړیوالتوبه وتړي او دخپلو حقوقو دغوښتنو لپاره د سر په بیه هم صرفه ونه کړي .

لومړی خو باید دافغانستان په پاکه خاوره د ناروا یرغل په بدل کې دغه هیواد ته د جګړې تاوان په پام کې نیول شوی وای چې په ډېره ناروا یې د دغه هیواد په لسهاوو زره عام ولسي خلک ووژل، دهیواد اقتصاد، بیارغونه، نظام ، امنیت او ټول هغه څه چې دانارشیزم او فساد له جګړو وروسته یې نسبتاً ترلاسه کړي وو له منځه یوړل اوکه نه نو لا اقل چې دغه نړیوال کنوانسینونه او ټولنې خو د دغو جنایاتو په وړاندې پټه خوله پاته نه شي !!

# غلط اودس!

**روایت ده چې حسن او حسین (رضي الله عنهما) یو سپین ږیری سړی ولید چې اودس یې کاوه، خو اودس یې په سنت طریقه برابر نه وو نو حسنین( رضي اللّٰه عنهما) مناسب ونه بلله چې مشر او بوډا سړي ته ووایي: اودس دې صحیح ونه کړ، باید داسې یې وکړي.**

**نو مشر ته یې د صحیح اودس ښودلو لپاره یې د قدر درنښت او هوښیارۍ لاره وکتله.**

**دوی دواړو بوډا ته وویل مونږ دواړه د تا مخکې اودسونه کوو، ته راته ګوره چې زما اودس په سنت طریقه برابر ده او که زما د ورور، زمونږ فیصله به ته کوې.**

**بوډا وویل: سمه ده، هغوی دواړو یو په بل پسې اودسونه وکړل او بوډا دواړه څارل، هغوی چې کله اودسونه وکړل بوډا ته یې وویل اوس فیصله وکه بوډا هم هوښیار سړی و، په حقیقت پوه شو او هغو دواړو ته یې وویل:**

**د تاسو دواړو اودسونه په سنت طریقه برابر دي، خو زما اودس په سنت طریقه برابر نه وو...**

**حکمت او هوښیاري سره مشر ته مسئله ورښودل.... (فیض القدیر للمناوي؛ ۳۲۸/۲) چاته چې خوب نه ورځې، هغه دې دا دعاء ووایي:**

**له زید بن ثابت (رضي اللّٰه عنه) نه روایت ده چې ما رسول اللّٰه( صلی اللّٰه علیه وسلم) ته د بې خوبۍ باره کې شکایت وکه چې ماته د شپې خوب نه راځې،رسول اللّٰه (صلی اللّٰه علیه وسلم) راته وفرمایل:**

**اللَّهُمَّ غارَتِ النُّجُومُ وَهَدَأَتِ العُيُونُ وأنْتَ حَيٌّ قَيُّومٌ لا تَأْخُذُكَ سِنَةٌ وَلاَ نَوْمٌ، يا حَيُّ يا قَيُّومُ أَهْدِىءْ لَيْلي، وأنِمْ عَيْنِي "**

**زید بن ثابت رضي اللّٰه عنه وایې، د دې دعاء په ویلو سره مې د اللّٰه تعالی په فضل بې خوبې ختمه شوه.(تفسیر ابن کثیر ۴/۱۶۸)**







حبیب مجاهد

# په هلمند کې سرېنيو فتوحاتو ته کتنه

د روان ۲۰۲۰ میلادي کال د اکتوبر په میاشت کې د اسلامي امارت مجاهدینو په هلمند ولایت کې هغه پراخې سیمې یو ځل بیا له دښمن څخه تصفیه کړې چې له اوس څخه لس کاله پخوا امریکایانو، برتانویانو او نورو اشغالگرو د مشترک، خنجر، د کوبر قهر او نورو عنوانونو لاندې د سترو پوځي عملیاتو په لړ کې اشغال کړې وې او بیا یې هلته خورا محکم بیسونه جوړ کړي او د وتلو په وخت یې د سیمو واک خپلو روزلیو اربکیانو ته سپارلی و.

هغه عملیات چې د اکتوبر میاشتې له لسمې نېټې پیل شول او تقریبا شل ورځې یې په وقفه یې شکل دوام درلود مجاهدینو یې په لړ کې د هلمند په مرکزي سیمو کې د کرشک، نهر سراج، باباجي، لښکرگاه، نادعلي او ناوې ولسوالۍ په مربوطاتو کې خورا ډېرې سیمې له دښمن څخه تصفیه کړې او د دښمن گڼ شمیر پاخه مراکز یې تر خپل تسلط لاندې راوستل.

مجاهدینو په پیل کې د کندهار او هلمند تر منځ غځېدلی سرک باندې عملیات پیل کړل چې په ترځ کې یې دا مهمه لار تر دیرش کیلومتره پورې د مجاهدینو تر تصرف لاندې راغله او د دښمن د اکمالاتو په مخ وتړل شوه.

د اکتوبر په دوولسمه د هلمند د نهرسراج او لښکرگاه تر منځ د دښمن مهم کمربند مات او پراخه سیمه (گمبدې،کوچیان، ظریف کڅه او سورگودر له دښمن څخه تصفیه او فتحه سول. مجاهدینو خبر ورکړ چې د وړمې ورځې د پیل شویو عملیاتو په پایله کې د هلمند په مرکزي سیمو کې د دښمن دوه مهم کنډکونه او درویشت پوستې په مکمل ډول فتحه او پکې میشت لسگونه گوډاگیان مړه او ژوبل شول او گڼ نور ژوندي ونیول شول.

د اکتوبر په څوارلسمه مجاهدینو خبر وکړ چې د هلمند د مارجې ولسوالۍ پراخې سیمې تریخ ناور ،سمیټې، نرى زابر، د نادعلي او مارجې دورراهې، لښکرگاه ته غځېدلي مهم سړک او د لښکرگاه تر دریمې حوزې بولان منډیانو پورې سیمه په بشپړ ډول تصفیه او په کې پراته د دښمن مراکز فتحه شول.

د اکتوبر په پنځلسمه مجاهدینو خبر ورکړ چې مجاهدینو دهلمند دنادعلي ولسوالۍ جنوبي ټولې سیمې لکه پارچاوه، بیلري، سیداباد، خوشحال کلی، لوی باغ، زرغون کلی، گروپ شش او ډېر نور کلي او سیمې د بولان تر نمرو پورې په بشپړ ډول تصفیه او فتحه سول. دغه راز د نادعلي ولسوالۍ شمالي سیمې لکه



تورژړ، نري پلونه، لوی نری، ماندونه، نورزو کلی، ډبروقلف، ګن شمیر څلورلارې. چاه انجیر او ډېر نور کلي او سیمې د لښکرګاه تر لسمې حوزې پورې د مجاهدینو تر تصرف لاندې راغلي دي.

د اکتوبر په اتلسمه نیټه مجاهدینو خبر ورکړ چې د هلمند د ګرشک او سنګین ولسوالیو ترمنځ د سنګین عمومي سړک د دورراهي څخه بیا د توري شاه پوري چې تقریبا ش کیلو متره اوږدوالی لري او تردې وړاندې ورباندې د دښمن پوستې پرتې وې په بشپړ ډول د دښمن له شتون څخه تصفیه او د مجاهدینو تر کنترول لاندې راغی. په همدې ورځ د نادعلي ولسوالۍ له شاول بازار سیمې څخه د دښمن چارواکي په تیښته لاړل او دا مهمه سیمه د مجاهدینو تر واک لاندې راغله.

د اکتوبر میاشتې په ۲۲ مه نیټه مجاهدینو خبر ورکړ چې د هلمند ولایت د ناوې ولسوالۍ خسراباد، ژړصاحب، تبېله، خواجه بابا، پارچاوه او ډېرې نورې سیمې دغه راز د ناوې عمومي سړک د لوی کلي څخه بیا تر شنه پله پوري ټوله سیمه له دښمن څخه تصفیه او د اسلامي امارت سپین بیرغ ورباندې ورپېد. ناوه هغه ولسوالي ده چې تر دې پخوا پکې دښمن خورا ځواکمن شتون درلود او څو کاله وړاندې یې مجاهدینو د فتحې لپاره پراخ عملیات ترسره کړي وو. خو سږ کال مجاهدینو د دې ولسوالۍ اکثره سیمې نیولې دي تر دې چې د ولسوالۍ مرکز او امنیه قومنداني د مجاهدینو تر محاصره لاندې دي.

که په لنډو ووایو مجاهدینو په دې عملیاتي پړاو کې د باباجي سیمه مکمله تر خپل کنترول لاندې راوسته، چې مهمې سیمې په کې کوپکه، نواباد او سپین مسجد دي، په دې ساحه کې مجاهدینو هم د ګرشک د دوراهي پر خوا د سرک د غاړې پوستې ټولې کړې او هم یې د شمال اړخ ته د رود په استقامت د دښمن پوستې او مراکز له منځه یوووړل، د مارجې له طرفه د د تریخ ناور بازار او د لشکرګاه پر خوا تللی سرک د ټانګانو ګودر تر سیمې فتحه شو. په ناوه کې سرخدوز دوراهي، ژړ صاب، د لوی کلي ماموریت چې لښکرګاه ته نږدې دی او د ناوې د مینځ سرک چې ناوه له لښکرګاه سره وصل کوي دا ټولې سیمې فتحه شوې. په نادعلي کې پخوا مجاهدینو یوازې په دښت سیمه کې حضور درلود، مګر اوس یې د شاول، ناقل اباد،شین کلی،خوشال کلی، چاه میرزا، زرغون کلی،ګروپ شش، لوی مانده،۳۱غربي، چاه انجیر او ګڼې نورې سیمې د دښمن له شتون څخه تصفیه کړې او د مجاهدینو تر واک لاندې راغلې.

په دې سیمو کې د دښمن ګڼ شمیر کنډکونه، لسګونه پوستې او پوځي مراکز یا مجاهدینو ته تسلیم شوي او یا هم په نظامي عملیاتو کې فتحه شوي دي. له دې علاوه لوی مقدار درنې او سپکې وسلې، ټانګونه، جنګي وسایط او وسائل د مجاهدینو لخوا غنیمت شوي دي. دغه راز لسګونه عسکر هم مجاهدینو ته تسلیم شوي دي. د هلمند وروستي فتوحات د سږ کال له مهمو فتوحاتو ګڼل کیږي او د دې علامه ده چې دښمن د مجاهدینو په وړاندې د مقاومت تاب نه لري.

# مافیای رسانه‌ای و ترور افکار

منیر احمد منیر

شبکه‌ها و رسانه‌های امروز، بیشتر به یک مأمور استخباراتی و اطلاعاتی می‌مانند؛ تا به یک نهاد مستقل، آزاد و بدون رویکرد سانسور.

ازاین قاعده، رسانه‌ها و شبکه‌های بزرگ و مشهور جهانی نیز مستثنا نیستند. بلکه به‌راستی، هسته و مرکزیت مافیای رسانه‌ای را تشکیل می‌دهند .این ادعا چیزیستکه برای دنبال‌کنندگان پروپاقرص رسانه‌ها و شبکه‌ها، مانند روز روشن واضح است.

از آنجایی که رسانه‌ها بیشترین تأثیر را بر افکار جامعه دارند؛ تا جایی که به عنوان یکی از اسباب قدرت و مهم‌ترین بخش از بخش‌های یک حکومت بحساب می‌آیند؛ بنابراین، قدرت های مطرح دنیا نیز بیشترین هزینه را برای ایجاد شبکه‌ها و رسانه‌های مؤثر می پردازند .و دراین مسیر بسیار موفقانه عمل کرده اند؛ درحالی که ما کوتاهی‌های قابل‌توجهی داشته ایم!

رسانه‌ها عموما زیر تسخیر قدرت‌ها و یا متأثر از فشارهای حاکم بر منطقهٔ خود هستند و با اشارهٔ ارگان‌های مربوطه دست‌به‌کار اند .نه آزاد اند و نه مستقل . نه حق می‌گویند و نه بر اساس حقیقت گام برمی‌دارند.

رسانه‌های اکنونی مانند یک مأمور و عسکر، در نبردها شریک اند و در بسیاری از جاها به‌اشتعال‌درآورندهٔ جنگ و دم‌زننده بر آتش جنگ اند.

بیشتر رسانه‌ها - طبق آنچه معلوم گشته است - شبکه‌هایی سازمان‌یافته اند که بر اساس رهنمودهایی که بر آنها املا می‌شود حرکت می‌کنند و اهدافی مشخص، اما خیلی مرموز را دنبال می‌کنند.

کسی که رسانه‌ها را دنبال می‌کند باید اولا اهداف هر رسانه را زیر نظر بگیرد و از پایه‌های اساسی آن رسانه خود را آگاه بسازد و از لابلای منشوراتش بفهمد که چه هدفی را تعاقب می‌کند .دومًا همهٔ خبرها و نوشته‌های آنان را از فیلترینگ دقت، تحقیق، مقایسه با واقع امر و غیره بگذراند و آنگاه اندیشهٔ خود را بر آن بنا کند؛ وگرنه هر رسانه‌ای، پیام‌های خودش را در قالب برنامه‌هایی که دارد در افکار ما تزریق می‌کند.

این‌چنین رسانه‌های سم‌آلود، درواقع افکار عموم را دارند ترورمی‌کنند؛ عقاید و باورها را سست می‌کنند؛ نسبت به بسیاری از امور واقعی ما را بدبین می کنند.

اثرات منفی این رسانه‌ها امری بس تدریجی و آرام است که نمی‌توان زود فهمید؛ مگر اینکه از کسانی چندسال دور باشید و زمانیکه دوباره با آنها هم‌نشین شدید، می فهمید که تا چه اندازه متغیر گشته و دارای افکار نوی شده‌اند.

می‌توان این تغییر را به چیزهای دیگری هم نسبت داد؛ اما از مهمترین آنان، رسانه‌هایی هستند که ما آنها را تعقیب می‌کنیم.

بنده خودم تا حالا با چنین افرادی برخورد داشته‌ام که روزی یکنوعِ فکر و اندیشه داشته‌اند؛ اما بعد از جدایی‌های چندساله، زمانی آمده است که کاملا با آن نظریه یا بعضا مخالفت نشان داده‌اند؛ امری که مرا بسیار به شگفت واداشته است: فلانی چرا این‌قدر تغییر کرده است !و دلیل عمده برای گمراهی آن فرد، غیر از تسلیم‌شدن در برابر رسانه‌های مغرض را نیافته‌ام.

## جالبه

**د د ښاغلي کرزي لومړی دور و، پلچرخي زندان ته تللی وم، البته جرم مې نه و کړی.**

**د خبریال په توګه د یوې مرکې لپاره تللی وم، مرکه هم له یوې خطرناکې مجرمې سره وه، شیرین ګل نومېده. دا د یوې جرمي شبکې مهمه غړې وه، کابل او جلال اباد ښار کې یې له کورونو په لسګونو جسدونه ترلاسه شوي وو.**

**شیرین ګل چاغ، غوړ او پوخ غنمرنګی مخ درلود، د پنجرې شاته ولاړه وه، سګرټ یې کش کړ او داسې لوګی یې را وشړه، لکه پاکستانۍ رکشا ته چې ځای په ځای ښه پرېمانه رېز ورکړې.**

**رښتیا! خبره رانه بله خوا لاړه، اصلي موضوع ته به راشم:**

**د زندان عمومي دروازه کې یې داسې تالاشي کړم، لکه له چاڼیزو عملیاتو وروسته چې یې نیولی یم .موبایل یې واخیست، د جیب ټول شیان یې واخیستل، په ښې لاس یې راته درې څلور لاسلیکونه وکړل، څه ګرمي وه او څه وهم پسې اخیستی وم، وارخطا وم، همداسې خولې رانه بهیدې.**

**ما ویل هسې نه لاسلیکونه پاک شي او خدای مکړه شیرین ګل سره مې یوه خونه کې بندي کړي!**

**په هرصورت څه موده وروسته خبر شوم چې د همدې زندان بندیانو جنګ کړی او په چړو یې سره وهلي.**

**بیا خبر شوم چې بندیان نشيي مواد بې غمه څکوي او....**

**ماته خپله تالاشي رایاده شوه!**

**شاوخوا دوه میاشتې مخکې کابل پوهنتون ته تللی وم، عمومي دروازه کې یې ښه سم  تالاشي کړم .آن زما د لاس کتاب یې هم ښه وکوت او څو ځلې یې وڅنډه،  تذکره یې راڅنې قید کړه او د بېرته راتګ وخت کې یې راکړه.**

**نن همدې پوهنتون ته څو تنه وسلوال له دومره مهماتو سره ننوتلي وو چې ساعتونه ساعتونه یې وژلـو او ټپـي کولو ته ادامه ورکړه او د محصلینو په وینو یې پوهنتون رنګ کړ.**

**ماته بیا خپله تالاشي را یاده شوه!  پای**

## دهیواد سیاسي څېړونکی، لیکوال او تاریخ پوه

# محترم عبدالستار حکمت له څرک سره په مرکه کې

- که خارجي ملاتړ چاته نجات ورکولای شوای نو کابل رژیم سره امریکا، ناټو او ۴۱ هیوادونه په سر اومال ولاړ وو خو راسخي عقیدي او ولسي ځواک داهرڅه مات او تس نس کړل ...
- یونس قانوني باید له تیرو ترخو تجربو عبرت واخلي او دخپلو ځاني ګټو لپاره ولسونه ډال او سپر ونه ګرځوي.

مرکه ـ خبیر احمد م

**پوښتنه:**

څه موده وړاندې د پخوانۍ ټلوالې یوه مهم مشر ـ او دامریکایي یرغل لوی حامي یونس قانوني چې د ټلوالې په استازیتوب د بون د کنفرانس مهم لوبغاړی و، د کابل له طلوع تلوېزون سره په اوږده څېړنیز بحث کې وویل، د بون کنفرانس افغانستان ته دنظام جوړونې، بیا رغونې، تعلیم، ښیرازۍ او بیدارۍ نوې صفحه پرانیسته

تاسې د قانوني دغه قضاوت او د بون د حمایت موقف سره له حقائقو سره خومره برابر بولې او ستاسې له نظره بون کنفرانس افغانانو ته څه ورکړل او څه یې ترې واخیستل؟

**ځواب**

د بُن کانفرانس کومه داسې غونډه نه وه چې ابتکار یې د افغانانو په لاس کې و . امریکایانو چې د ۲۰۰۱ م کال په اکتوبر میاشت کې په افغانستان یرغل وکړ، له څه کم دوه میاشتې مقاومت وروسته د اسلامي امارت ځواکونو له ښارونو او جنګي کرښو شاتګ پیل کړ. دا وخت چې په پلازمینه او ولایتي مراکزو کې د قدرت خلاء رامنځته کیدله او امریکایانو نه شوای کولای پخپله د قدرت خلاء ډکه کړي. نو په عاجل ډول یې د اسلامي امارت بیلابیل مخالفین په یوه نامتجانس کانفرانس کې د ډسمبر په دوهمه نیټه د المان بون ښار ته راټول کړل او د راتلونکې اداري هغه تشکیل یې پرې امضاء کړ چې امریکایانو ترتیب کړی و.

په دې اساس ویلای شو چې د بون کانفرانس په اصل کې د امریکایي یرغل یوه بشپړوونکې ضمیمه وه، چې د دې ناولي یرغل د دوام او توجیه لپاره جوړ شوی و. د دې کانفرانس په اړه وروستي رابرسیره شوي معلومات ثابتوي

چې د کانفرانس سمبالوونکی که څه هم ظاهرا د ملل متحد استازی الاخضر ابراهیمي بلل کیده. مګر د پردې تر شاه ټولې چارې د امریکایي استازي جیمز دابنز په کنترول کې وې. د دې کانفرانس دوو ګډون کوونکو عبدالکریم خرم او محمد ناطقي د کانفرانس په اړه خپلو کتابونو کې ډیر حقائق رابرسیره کړي. هغوی لیکلي چې په یوه مرحله کې د راتلونکې ادارې د مشرۍ لپاره د عبدالستار سیرت او حامد کرزي تر منځ رای ګیري وشوه. چې سیرت ۱۱ او حامد کرزي یوه رایه وګټله. خو بیا هم د امریکایانو د فشار له امله څکه کرزی وټاکل شو چې سیرت په افغانستان کې د امریکایانو له اوږد مهاله شتون سره ښکاره مخالفت کاوه. له دې څخه معلومیږي چې دغه کانفرانس یوازې له یرغل وروسته ګوډاګی ادارې ته د مشروعیت موندلو هڅه وه. په دې کانفرانس کې په لومړي ځل په افغانستان کې واک د قومونو او سمتونو په معیار تقسیم شو. کلیدي وزارتونه ټول د یوې ولسوالۍ خلکو ته ورکړل شول او د همدې کانفرانس په ترڅ کې د قومي او لساني تعصباتو موضوع یو ځل بیا برجسته شوه. د بن کانفرانس رښتیا هم د افغانستان په تاریخ کې یوه نوې صفحه وه. خو د بدمرغۍ، فساد، اشغال او قسماقسم فتنو د پیل کرغیړنه صفحه چې تر اوسه جریان لري.

**پوښتنه:**

قانوني وویل، طالبان چې ډېر زور ووهي نو افغانستان کې به ایله ۴۰ سلنه واک او اغیز ولري، د هغه په اند طالبان باید راتلونکي نظام کې هم له څلوېښت سلنه زیاته غوښتنه ونلري، قانوني داهم وویل چې د طالب په مقابل کې (پخواني ټلواله) د افغانستان پر ٦٠ سلنه خاوره حاکمیت لري، نو تاسې د قانوني دغه جمعه بندي او تقسیماتو ته په کوم نظر ګورئ؟ او په مشخص ډول پخوانۍ ټلواله د دې وړ اوحقداره بولی چې د افغانستان ٦٠ سلنې پر واک او اختیار ژبه وکاروي؟

**ځواب**

اصلا خو د قانوني خبره له دې امله بې ځایه ده چې نوموړی لا هم د تیرو ۱۹ کلونو په حیث افغانستان ته د یوې غنیمت او ولجې په نظر ګوري چې باید قدرت یې د فیصدۍ په اساس په ډلو وویشل شي. زموږ په باور لکه څنګه چې افغانستان متحد هیواد دی، قومونه تر خپل منځ د اسلامي اخوت په رشته سره تړلي او په پیړیو پیړیو یې مشترک د وروروليۍ ژوند کړی. د افغانستان سیاسي اقتدار هم باید همداسې متحد او لایتجزاء پاته شي. په تیرو نولسو کلونو کې موږ د قدرت د سهمیه بندۍ نتائج ولیدل. چې د قومي، لساني او سمتي نفاق درزونه یې نور هم پراخ کړل. جاهلانه تعصبات یې زیات کړل او بالاخره یې د یوه متحد هیواد په حیث د افغانستان او افغان ولس بقاء تر سوال لاندې راوسته. اسلامي امارت لکه څنګه چې پخوا یې هم افغانستان له سمتي، لساني او قومي تفرقو ژغورلی و. دا ځل به هم ان شاءالله هیواد ته له دغو کرغیړنو ویشونو نجات ورکړي.

**پوښتنه:**

یونس قانوني ویلي طالبان غواړي له نظامي لارې قدرت ته ورسیږي دقانوني په خبره که طالبان دا کار وکړي، نو تر پخوا څو برابره به یې په مقابل کې دوئ ودریږي، حتی ولسي ملیشي به جوړې کړي او له ګڼو هیوادونو څخه به د جنګ لپاره مرسته وغواړي قانوني نور هم دغې خبري ته زور ورکړی چې همدا اوس هم په دغسي مقابلې غور لري او دپخوانۍ ټلوالې له ریزرف افرادو سره په تماس کې دی.

د قانوني دغه برداشت او جګړمار ذهنیت د افغانستان له اوسني وضعیت چې تازه دشل کلن خارجي اشغال له منګلو را وتونکی دی څنګه ارزوی ؟ او ایا په رښتیا هم

طالبان یـواځې دجګـړې اوجنـګ تګـلاره لـري کـه سیاسـت، تفاهم او مصلحت هم پېژني؟

**ځواب**

اسلامي امارت خو بیا بیا خپل موقف څرګند کړی چـې لـه اشـغال وروسـته د یـوه افغـان شـموله اسـلامي نظـام د جوړولو اراده لري او نه غواړي پخوانۍ تجربې له سره تکـرار شي. دا چې له یوې خوا بین الافغاني مذاکرات جریـان لـري او بـل اړخ تـه د مخـالف جهـت ځینـې مشرـان داسـې غیـر مسؤلانه خبرې کوي یوازې یې د دوی د جګـړه ییـز ذهنیـت محصول او کرغیړنو ارادو ښکارونددوی یې بللی شو.

زمـا پـه بـاور اوس د دې وخـت رارسـیدلی چـې ټـول اړخونـو لـه تیـرو تجربـو زده کـړه وکـړي او د مـؤمن ولـس غوښتنه چې اسلامي نظام دی ومني. که قـانوني فکـر کـوي چې د خپلو لنډغرو ملیشو او یا بهرنیو بادارانو په مرسته بـه د ولس د دې غوښتنې په وړاندې خنډ شي نو دا فکر یې بـې ځایه دی. ځکه زموږ د ولس د جهـادي ارادې پـه وړانـدې د نړۍ څو زبرځواکونه مات شول او بـالاخره یـې شـاګرځ پیـل کړ. قانوني د دې پر ځای چې له وخت مخکې غیـر مسـؤلانه اظهارات وکړي ښه به دا وي چې له تیرو تجربو په زده کـړو د مسائلو د سوله ییز حل په اړه فکر وکـړي. ځکـه پـاروونکي اظهارات د هیچا په ګټه نه دي.

**پوښتنه:**

قانوني په دغه مرکه او بحـث کـې ویـلي، چـې طالبـان ددې وړتیا نه درلود چې په یـواځې ځـان دده پـه اصـطلاح د مجاهدینو دولت چې استاد رباني یې مشري کوله چپه کـړي او په ۹۰ فیصده افغانستان واک وچلوي، بلکي پاکسـتان او د القاعده تنظیم ۴۰ زره جنګیالیو په ګډه داکار وکړای شـو، د ټلوالې د شکست او درباني درژیم د له منځـه وړلـو لپـاره د قانوني پورته تورونه او توضیحات څـومره د منلـو او اورېـدلو وړ دي؟

**ځواب**

متل دی وایي( پړ هم یو دلیل لري) قـانوني او ډلـه یـې شاید د خپل شکست او تیښتې په اړه بیلابیل دلائل وتراشي. خو واقعیت دا دی چې د افغانستان اسلامي امارت د افغـان مؤمن ولس لـه منځـه راپورتـه شـوی یـو سرتـاسري جهـادي پاڅون و. په تاریخي لحاظ د ولسي پاڅونونو یـو خاصـیت دا ثابت شوی چې په وړانـدې یـې ډلـې ټپلـې مقاومـت نـه شي کولای. دا چې اسلامي امارت د هیواد په ۹۵ فیصـده خـاوره حاکمیت ترلاسه کړ. مختلف جګړه ماران، د کمـونیزم پـاتې شـوني جـنرالان، ټوپکیـان او د شر او فسـاد مختلـف النـوع عناصر یې له یوې مخې جارو کړل. همدا اسـتثنایي قـوت او کارنامه یې د ولسي او افغاني ماهیت نغد دلیل دی.

که د پردیو او بهرنیو هیوادو په مرسته چا بریـا ترلاسـه کولای شوای. نو هغه مهال خو د قـانوني لـه ټلـوالې سره د د روس، امریکا، هند، ایران، تاجکستان او ازبکستان په شـمول د ګڼو هیوادونو ملاتړ موجود و. هغوی ورته وسلې او پیسـې رالیږلې. حتی روسي او هندي مشاورین خـو پـه جګـړه کـې ورسره شریک وو. که د بهرنیانو ملاتړ ټـاکونکی وای نـو بیـا خو باید دوی واکمني یې ټینګـه کـړې وای. بلـه خـبره داده چې امریکا، ناټو او ۴۱ هیوادونو دکابل لـه مـزدور رژیـم سره چې قانوني یې دولسمشر ړومبی مرستیال وو ټول زور وواهه خو بیاهم دولس او عقیدي زور مات اووشړول اصلي خـبره دا ده چې اسلامي امارت د یوه برحق صف په حیث له الهـي نصرت څخه برخمن او د مؤمن ولس ملاتړ ورسره و. نو ځکه یـې هـم هغـه وخـت او هـم اوس پـه وړانـدې د نـړۍ سـتر طاقتونه په ګونډو شول.

**پوښتنه:**

د ټلوالې مشران ځانونو ته دافغانستان د مهمـو قومونـو او ملتونو دمشرانو نسبتونه کوي ایا په حقیقت کې هـم دوئ د ولسونو ملاتړ او محبوبیت له ځان سره لـري او یـا پـه بـل

تعبیر دوئ خپلو ولسونو ته له جنګ، جګړو او نورو بدبختیو پرته نور څه هم په ارمغان کې راوړي اورابه یې وړي ؟

## ځواب

واقعیت دا دی چې په افغانستان کې جګړه هیڅکله قومي نه وه او نه هم په تاریخي لحاظ د افغانستان قومونه د یو بل پر خلاف دریدلي دي. اما په وروستیو دیرشو کلونو کې خصوصا د تنظیمي جګړو له وخته ځیني جګړه ماران د پلویانو موندلو په مقصد د قومي جګړې شعار پورته کوي. تر څو د ولسونو قومي تعصب راوپاروي او په دې ډول د جګړو د پرمخ بیولو لپاره پلویان او جګړه ماران پیدا کړي.

دغه جګړه ماران د قوم، نژاد او سمت له نوم څخه غلطه استفاده کوي. د افغانستان ورونه قومونه دوی ټول خپل قاتلان او مجرمین ګڼي. قومونه تر خپل منځ په کلي، بازار، مسجد او هر ځای کې د ورونو په حیث ګډ صمیمانه ژوند لري. جګړه مارانو د افغانستان اقوامو ته له بدمرغیو، فساد، غصب، ظلم او بدنامیو پرته بل هیڅ ارمغان نه دی راوړی.

که دمثال په ډول دپنجشیر او شمالي ډنډ او نورو مربوطه سیمو له مجاهد پروره پرګنو څخه په یوه ازاده فضا کې وپوښتل شي چې ټلوالي دوئ ته سه ورکړي نو له شک پرته به هغوئ ووایي چې فقر، دربدري، نفرت له نورو ولسونو سره جنګ، تشنج او تاریخي ناورینونه یې ورته تحفه کړي همدغه ولسونه یې دسون توکي ګرزولي دقوم، ژبي او سمت د ناولو شعارونو په شکل کې بده استفاده کوي او اصلي خبره داده چې دټلوالي مشرانو صرف جیبونه او بهرني اکاونټونه ډک کړي، مانۍ اوبلند منزلي یې په داخل او خارج کې ابادي کړي، بلـه جفا یې داکړي چې خپل فامیلونه یې هم ورڅخه فرانسي، لندن، هندوستان اونورو هیوادونو ته بیولي؛ نو ویلای شو چې دټلوالي اودقانوني په اصطلاح دمقاومت مشران هیڅکله ددغو ولسونو خواخوږي او له غم اودرد څخه مړه ندی بلکي دهغوئ نوم او دهغوئ له پاک تشخص څخه بده استفاده کوي

## پوښتنه:

د افغانستان مسلمان او مجاهد ولس ته په دې خاصو شرایطو کې ستاسې پیغام او مشخص ټکي څه دي ؟

## ځواب

د افغانستان ولس باید د حالاتو حساسیت او نزاکت درک کړي. وضعیت داسې دی چې اشغالګر شاید له افغانستان څخه پښې سپکې کړي. اما د هغوی ځایناستي او محلي ګوډاګیان شاید په بیلابیلو بهانو او توطیو سره د خپلواک اسلامي نظام د مخنیوي هڅه وکړي. په دې شرائطو کې د افغانستان ولس باید د مقدس جهاد ارمانونو او څلویښت کلونو قربانیو ته ټینګ تعهد ثابت کړي.

په دې شرائطو کې به طبعا د دښمن تبلیغات هم زیاتیږي. سولې ته د ولس له تلوسې څخه به هم سوء استفاده کیږي او مجاهدین به ورته د جنګ عاملین معرفي کیږي. نو ولس باید بیدار واوسي او قضیه په لوی تصویر کې وګوري. هغه دا چې موږ یو مؤمن او مسلمان ملت یو. زموږ په هیواد کفري اشغالګرو برید کړی. زموږ اسلامي نظام یې نړولی، زموږ سیاسي اختیار، استقلال او ځمکنۍ تمامیت یې غصب کړی دی. زموږ فریضه دا ده چې دغه نقصانات جبیره شي. د هیواد ټول واک بیرته باید زموږ مؤمن ولس ته وسپارل شي او د اشغالګرو له تأثر او غیر مستقیم اشغال څخه هیواد نجات پیدا کړي. دغه راز زموږ حکومتي نظام، معارف، فرهنګ، اقتصاد، رسنۍ او ټول امور باید د مقدس شریعت په معیار برابر شي. دې هدف ته که موږ په هره لار رسیږو، باید چې ځان ورسوو. او هر هغه څه چې موږ له دې هدف څخه لري کوي که تر هر عنوان لاندې وي باید له منلو ځان وژغورو. اوسنی حالت زموږ د څولسیزو د قربانیو د ثمر راټولولو مرحله ده. چې د هر کله په نسبت ټینګ تعهد، بیداري او توجه غواړي.

# نا آرامه کابل، تر مایوسه شېبو...!

صفي الله" رائد"

د زمانې روان حالات لکه د مني ډاروونکي بادونه ډېر بې وخته او بې خونده اوړي، را اوړي او بدلېږي.

ځينې وخت د مني دا سپېره او هيبتناکه بادونه له ځانه سره د ظلم او وحشت هواګانې هم راپورته کړي، حالات دومره په وېرې بدل کړي؛ چې آن د خلکو په سينو کې زړونه تنګ شي، دا لويه او پراخه ځمکه هم پرې خپلې کړې، راتنګې کړي.

چې دغسې يو بد حالت په رښتيا سړی هک پک حيرانوي، ته وا په داسې بدو او کرغېړنو حالاتو کې به لاڅنګه خلک ژوند کوي؟

په رښتيا هم؛ کله چې يو څوک په داسې وخت او حالت کې د ژوند شپې سبا کوي سخته ده، چې زړهٔ يې پرسينه کې قرار او آرام پاتې شي.

هو! بې چاره کابل نن همداسې يو ځای ګرځېدلی؛ خلک يې همداسې يوڅوک ګرځېدلي؛ چې نه يې پر ويښه ارام شته او نه يې پر خوب!..

هو به هو لکه د کابل پر ځمکه چې د مني بوږنونکو هواګانو ترڅنګ د ظلم او وحشت بادونه هم رالوتي وي.

هو !کابل همدومره بدرنګ شوی، کابل مايوسه، کابل خفه او کابل غمزده دی، کابل د قبطيانو لاس ته لوېدلی، کابل بېچاره دی؛ کابل موسی غوندې يوچاته ضرورت لري.

د کابل بېچاره رعيت دومره ډار او هيبت نيولی، چې نه ډاډه له کوره وتی شي او نه ارام کورو ته تللی شي، سړی دومره هک پک کړي؛ چې دوي به نو اخر پاتې ژوند څنګه پر مخ وړي؟

هو !کابل اوس د سکون هغه دآب، تاب او ښکلا نه لري چې نړېوال به يې سيل ته په ډاډ او اطمينان راتلل او د خوښۍ ډک راتګ به يې په وياړ د تاريخ پاڼو ته سپاره.

هو !کابل کې اوس هغه ښکلا نشته چې شاعرانو او اديبانو به يې په ډېر هنر ښايست انځوراوه.

د ۱۳مې پېړۍ په پيل کې کابل په ټوله نړۍ کې د زده کړو ځای او د ښکلو ځايونو په کتار کې شمېرل کېده.

په رېښتيا چې کابل نوم درلود، کابل نېښنان درلود، کابل يوه سپېڅلتيا درلوده، کابل يوه رڼا او يه ښکلې هوا درلوده.

خو! له بده مرغه په تېرو نولسو کلونو کې يې دغه سپېڅلتيا د يرغلګرو او اشغال ترڅنګ، ډېرو پلورل شويو پرديپالو، لارو شکونکو، اختطافګرو، غلو ککړه کړې، ډېرو پلورلشويو په ډېره بدسترګۍ د کابل د رڼاګانو بله ډيوه د بل په لمسون مړه او کابل يې راته بې خوند کړ.

کابل چې ګورم، کابل خفه دی، کابل غمزده دی او کابل بې چاره دی!..

هو! کابل په همداسې کرغېړنو حالاتو کې د ژوند کړې تېروي؛ کابل بيا د قبطيانو لاس ته لوېدلی؛ کابل يو بل موسی ته ضرورت لري.

د يو سپين سپېڅلي اسلامي نظام په هيله

# شل کلن اشغال

## او د جنګي جنايتونو تسلسل

حمزه حسيني

د افغانستان پر مظلومه خاوره چې کله غربي استعمار هجوم راوړ او دا هيواد يې اشغال کړ، اشغالګرو ځواکونو د " سوله ساتو ځواکونو " تر نامه لاندې ګڼ شمېر جنګي جنايات تر سره کړل، که څه هم په افغان خاوره يې تجاوز کول خپله يو نه جبرانېدونکی ستر جنايت و، خو له دې سره سره يې دلته ګڼ شمېر بې دفاع ولسي وګړي بمبار، شهيدان او ټپيان کړل.

دا يوازې استراليا نه ده؛ چې ورته جنايتونه يې تر سره کړي، بلکې د امريکا تر مشرۍ لاندې چې څومره هيوادونه افغانستان ته راغلي، هر يوه يې بې شمېره جنايتونه تر سره کړي دي، خو توپير يې يوازې په همدې کې دی، چې استراليا د خپلو جنايتونو په يوې کوچنۍ برخې اعتراف کړی او دا نور هيوادونه لا هم ورباندې ګونګه خوله دي.

استراليا چې دمګړۍ افغانستان کې ۴۰۰ سرتيري لري، دفاع وزارت يې له ۲۰۰۹ ميلادي کال څخه تر ۲۰۱۳ ميلادي کال پورې د خپلو سرتېرو يوازې ۵۷ پېښې څېړلي دي، دوی له دغو څېړنيزو هڅو وروسته بالآخره دې نتيجې ته ورسېدل، چې د دوی اړوند سرتېرو يوازې د پنځو کلونو په موده کې ۳۹ بې دفاع ولسي وګړي وژلي دي او په دې پېښو کې د استراليا د هوايي ځواک ۲۵ کسان ښکېل بلل شوي دي، خو دا چې د اشغال په ټوله موده کې به ددې هېواد اړوند سرتېرو څومره جنايتونه ترسره کړي وي او څومره مظلوم هيوادوال به يې له تېغه تېر کړي وي، لا هم نه ده مالومه.

دا چې اشغالګر ځواکونه يوازې د خپلو ګټو او موخو لپاره افغانستان ته راغلي، د بيا رغونې او هوساينې لاپې يې يوازې ډراماتيکې او شعاري بڼه لري، البته په واقعيت کې دوی خپله هم نه جبرانېدونکي مظالم تر سره کړي او هغو افغانانو ته يې هم د ظلم او ستم زمينه برابره کړې، چې په ظلمونو کې نړيوال شهرت لري او آن تر اوسه د هغوی اکمال هم کوي.

د ترسره شويو مظالمو له امله د افغانستان مظلومو وګړو د" هيګ " نړيوالې محکمې ته تر دا مهاله د



اشغالگرو د جنگي جنايتونو اړوند دوه میلیونه شکایتونه استولي دي، خو دغې نړیوالې محکمې تر اوسه د دوي شکايتونه نه دي اورېدلي او نه يې دوي ته مثبت ځواب ويلی دی.

بلخوا ټولې نړیوالې حقوقي ادراې، چې د بشر د حقوقو نعرې وهي، د اشغالگرو ځواکونو پر جنایتونو چوپه خوله دي، نه یې له جنایتونو را گرځوي او نه هم د مظلومو هیوادوالو چیغې اوري، له دې مالومېږي، چې دلته هر څه یوازې د شعار تر حده دي او بس.

که څه هم د استرالیا د بهرنیو چارو وزارت د دغو جنایتونو له امله له افغانانو بښنه غوښتې، خو یوازې بښنه غوښتل او غندنه د مظلومو افغانانو درد نشي دوا کولی، باید ملگري ملتونه، د بشر د حقوقو دعوه داران او ټولې نړیوالې حقوقي ادارې په رښتیني توگه د اشغالگرو ځواکونو د ټولو جنایتونو پلټنه وکړي، عاملینو ته دې سزا ورکړي او متضررینو ته دې د ځاني او مالي تلفاتو تاوان ورکړي.

د استرالیا تر اعتراف را وروسته باید ټول اشغالگر هېوادونه په دې پوه شي، چې ځواکونه یې په افغانستان او نورو مستعمره هېوادونو کې یوازې جنگي جنایتونه ترسره کوي، د سولې او امنیت راوستلو شعارونه یې تش لاپې دي، باید ژر تر ژره د افغانستان په گډون له ټولو هغو هیوادونو ووځي، چې د دوي تر ناوړه اشغال لاندې دي او د خپلو سرتېرو روزنې ته دې بیا کتنه وکړي.

د نړیوالو اشغالگرو ناروا تجاوز او جنگي جنایتونو ته په کتو ټول افغانان له استعمار څخه نفرت لري، د استقلال په راوستلو کې یې خپلې متې رانغښتې دي، په دې لاره کې بې دریغه قرباني ورکړې او لا په خپل مسیر روان دي، په استقلال مئین هېوادوال غواړي خپل هیواد ته سوله او امنیت له استقلال سره یو ځای راولي، دا چې ځینې کړۍ لا هم هڅه کوي چې اشغال بر قرار وساتي، د هېواد او هېوادوالو ضد عناصر دي، چې له افغانانو سره کوم اړخ نه لگوي، دوي په لوی لاس جنگي مجرمینو ته زمینه سازي کوي چې دا له افغانستان سره ستره جفا ده.

# بهترين تحفه ها

١ ــ بهترين تحفه براى پدر عزت است.
٢ــ بهترين تحفه براى مادر احترام است.
٣ــ بهترين تحفه براى استاد احوال پرسى است.
٤ــ بهترين تحفه براى پسر مهربانى است.
٥ ــ بهترين تحفه براى زن محبت است.
٦ــ بهترين تحفه براى طفل تربيت است.
٧ــ بهترين تحفه براى دوست وفا است.
٨ــ بهترين تحفه براى جامعه خدمت است.
٩ ــ بهترين تحفه براى همسايه همدردى است.
١٠ــ بهترين تحفه براى مرده دعا است.
١١ــ بهترين تحفه براى آخرت نماز است.
پس هميشه با بهترين ها انس بگيرى

## د هېواد د معاصر سیاسي او جهادي بهیر له څېړونکي لیکوال

# ښاغلي موسی فرهاد سره

## د ځرک مجلې تازه مرکه

❖ **د مقدماتي میکانیزم پرسر توافق، د خوښۍ زیری دی.**

❖ **د ناټو د مشر څرګندوني د بل هدف لپاره دي، زه په دې متیقین یم چې ناټو به د امریکا له خروج وروسته د یوې شیبې لپاره هم په افغانستان کې پاتي نشي، ځکه دا نه معقوله ده او نه د هغوی ګټې دا ایجابوي.**

مرکه کوونکی: خلیل- عزیز

**ځرک:ـ د راپورونو له مخې او په قطر کې د افغاني جهتونو د توضیحاتو په آساس، د بین الأفغاني مذاکراتو پرطرزالعمل موافقه شوې، ستا په نظر د طرزالعمل پرسر دومره اوږد بحث د څه لپاره و، اصل د نه جوړېدو ټکي څه وو، آیا اوس هغه جنجالي ټکي حل شوي، او په څه شکل حل شوي؟**

**موسی فرهاد:-** بسم الله والحمدلله. وبعد: حقیقت دا دی هغه کار چې باید ډېر وختي شوی وای، متاسفانه ډېر وځنډېدی، چې له امله یې پوره نه میاشتې په هیواد کې خونړي حالت نور هم دوام پیدا کړ، په زرګونو هیوادوالو ژوند او نیم ژوند له لاسه ورکړ، له ډېره بده مرغه چې سبب یې فقط هغه څوک واقع شوي چې همدا اوس اوس هم د طرزالعمل پرسر له توافق سره بیا هم د مخالفت پرستیج ټینګ ولاړ، خو له ناچارۍ نه د هو! سر خوځوي.

د دې واضح مطلب دا شو چې په افغانستان کې د دې ۹میاشتې مزید جګړې غځولو او له سولې څخه د ولس ناهیلي کولو پړه ټوله د همدې بانډ پرغاړه ده، څوک چې د ارګ له ادرسه ځان د افغانستان واکمن ګڼي خو په واقعیت کې یوازي خپلي شخصي-ډالرۍ او د نیمګړي څو فیصدي واک ګټې ورته مطرح دي، نور هیڅ نه.

مګر له دې هرڅه سره سره بیا هم د خوښۍ ځای دی چې د مذاکراتو لپاره د مقدماتي میکانیزم یا طرزالعمل پرسر څه ناڅه توافق رامنځ ته شو، امید دی چې په راتلونکو مراحلو کې بیا د ۱۹کلنو لاسته راوړنو تر نامه لاندي د سوله ضد عناصرو لخوا مذاکراتي پروسه له خنډونو سره مخ نشي.

بله خبره دا چې د دواړو ټیمونو د اظهاراتو له مخې د طرزالعمل پر ټولو ۲۱ یا ۲۲ مادو توافق شوی دی.

زما د مالوماتو له مخې د میکانیزم شل مادې ټولې د کابل د مشترک هیئت لخوا لیکل شوې او د اسلامي امارت استاځو ته وړاندي شوې وي، د امارت استاځو پر دې ټولو توافق ورسره کړی و، خو دا یوه ماده یې چې د بین الأفغاني مذاکراتو د ابتداء بنسټ به د دوحې تړون وي، دا یې هم په مقدمه کې او

هم یې د یوې مادې په شکل ورزیاته کړې وه. یعني شل مادې له یوه لوري او یوه ماده له بله لوري وراضافه شوې، چې له دې سره د جمهوریت ټیم ځینو غړو مخالفت څرګند کړ، خبره یې ارګ او میډیا ته یووړه چې پایله یې نه میاشتني اختلاف ته ورسوله او بالآخره بیا هم پر همغه مخکني شکل توافق رامنځ ته شو.

که څه هم طرفینو یې په اړه رسمي جزیات نه دي ورکړي، خو زموږ مالومات ښیي، هغه ټکي چې د کابل ټیم وربانـدي ټینګـار کـاوه چـې د مشـورتي جرګـې او یـوې بـلي اعلامیې خبره وه، هغه یې په مقدمه کې په دې شکل ځای شوې چې مذاکرات به د دوحې د تړون په آساس وي، په دې پروسه کې به د ټولوافغانانوغوښتنې په نظر کې نیول کیږي، د سولې په برخه کې به د ملګروملتونو او نورو اړوندو بهرنیو مشورو ته هم بې اعتنائي نه کیږي.

بهرحال دا یو ښه زیرى دى چې د اشغال له خاتمې سره هم مهاله په افغانستان کې د اسلامي نظام د نفاذ په خاطر د جګړو او بدمرغیو ځای امن، سوله او نیکمرغي نیسي.

**ځرک:ـ د سولې او مذاکراتو په باب که خبرې، ناستې او تعاملات که هغه له امریکایانو سره وي او یا افغاني جهتونو سره؛ د کابل رژیم یې په اول سره کلک مخالفت کوي، خو بیا وروسته هغه ټولې خبرې رژیم مني، لکه په قطر کې د اشغال د خاتمې تړون، د ۵۰۰۰ زره بندیانو خلاصون، بین الافغاني مذاکرات، د دوحې تړون د مذاکراتو د اصل په توګه د واحد فقهي مصدر خبره، د مذاکراتو د طرزالعمل موضوع چې دا هر څه رژیم ومنل او مني به یې، ستاسي په اند د کابل رژیم ولې هغه مخالفت او جنجال ته وردانګي، چې بیا یې تر پایه پاللی او ترسره کولای نشي؟ په داسې حال کې چې ارګ کې سوونه مشاورین هم ناست، د پارلمان په نوم جرګګی او متخصصین هم لري.؟**

**موسی فرهاد:-** متاسفانه د هیواد واکمن چې خپله اراده ونلري، د پردیو د زور او زر په مټ، پر ولس تپل شوی وي، طبعي ده چې واکمن به پخپلو پریکړو کې هم بې اختیاره وي، هرڅه به یې همداسي مسخره وي. دا سمه ده چې سنجیده مشاورین به ولري، خو هغوی هم ټول د همدې ډالري ګټو او نیمګړي اقتدار لیونی مینې تسخیر کړي.

د دې خبرې د نور وضاحت لپاره زه یو مثال درته وایم، په ۲۰۰۲م کال کې غالباً د کرزي د انتقالي دورې پرمهال به و، نوموړي اعلان وکړ چې د طالبانو ټول غړي د مشرانو په شمول کولای شي چې په افغانستان کې په آزاده فضا کې ژوند وکړي، زموږ ورسره مشکل نشته.

د دې اعلان په اوریدو سره د امریکا د هغه وخت دفاع وزیر ډونالډ رمسفیلډ سمدستي اعلان وکړ چې ګویا کرزی د دې صلاحیت نلري چې طالب مشرانو ته برائت اعلان کړي، د ده په خبره د طالبانو مشران او نور ټول غړي به د امریکا او د هغوی د ائتلافیانو تر تعقیب لاندې وي، ترڅو یا ووژل شي او یا ژوندي ونیول شي.

برعکس ۱۹کاله وروسته چې امریکا د خپل ټول غرور سره سره له طالبانو سره د مذاکراتو میز ته کښینسته، او د اشغال د خاتمې تاریخي تړون یې ورسره لاسلیک کړ، په پایله کې یې د پنځه زره بندیانو د خلاصون ژمنه وکړه، د ارګ مشر اشرفغنی اعلان وکړ چې موږ د بندیانو د خلاصون هیڅ ډول تعهد نلرو، او په عین حال کې یې نورې ډېرې سرې کربښې وایستلې، خو بالآخره د امریکا اوامراو احکام دلته هم خلکو ولیدل چې برملا عملي شول او لا هم عملي کیږي. نو مطلب دا چې په کابل کې د مسلطو واکمنو واک، اختیار او اراده د هغوی خپله نه ده، او له دې حقیقته هیڅوک انکار هم نشي کولای.

**ځرک:ـ ځینو خلکو به ویل: چې اسلامي امارت یـواځې د جنګ او جګړو اتلان دي، پرسیاسي افهام و تفهیم باور نلري، آیا دا واقعیت دی؟**

**موسی فرهاد:-** زه فکر کوم دا خبره برعکس ده، اسلامي امارت د خپل حاکمیت پرمهال هم داخلي مخالفینو ته د مذاکراتو او جوړجاړي وړاندیزونه کول او هم یې امریکا ته په

سلګونو ځله د میز پرسر د مسایلو د حل کولو پیشنهادات کول، مګر نه کورنیو مخالفینو دې ته زړه ښه کاوه چې له امارت سره تفاهم ته کښیني او امریکا خو هسي هم ځان د نړۍ سپر پاور باله، امریکایي واکمنو خو دا بیخي د ځان توهین باله چې له طالبانو سره مذاکراتو ته کښیني.

دا چې اوس په عملي شکل دنیا ولیدل چې اسلامي امارت هم د جګړې په میدان کې د قرباني وړتیا لري او هم د میز پرسر د ستونزو د حل قابلیت لري. نو ثابته شوه چې د امارت په اړه دا ادعاء چې یوازي جګړه کولای شي؛ دروغ او له حقیقته لیري خبره ده.

**څرک:- فرهاد صاحب! د ناټو سرمنشي- وخت په وخت بیانونه ورکوي، چې امریکا باید خپل پوځیان له افغانستان څخه ونه باسي، ابله ورځ یې وویل چې که امریکایان وځي، ناټو نه وځي؛ دغسې بیانونه څه په ګوته کوي، آیا ناټو به د امریکا له همراهۍ او اجازې پرته افغانستان کې د خپلې خوښې حضور تمدید کړای شي؟**

**موسی فرهاد:-** زه په دې متیقین یم چې ناټو به د امریکا له خروج وروسته د یوې شیبې لپاره هم په افغانستان کې پاتي نشي، نه دا د هغوی ګټې ایجابوي چې له امریکا سره د یو آشر او ائتلاف د مجبوریت له مخې دلته راغلي وي؛ او بیا دې دلته امریکا خپل حضور ختم کړي، خو ناټو دې لا بیا هم خپل نظامي موجودیت ته ادامه ورکړي، دا هیڅ معقوله نه ده.

اما دا چې د ناټو سرمنشي-ولي وخت په وخت داسي بیانونه ورکوي چې هغه د اشغال او جګړې د دوام او د سولې ضد وي؛ زما په خیال د دې دوه علته کیدای شي، یو دا چې د کابل رژیم چې د دوی د ډېرو ځاني او مالي تلفاتو په ورکړې سره دا شل کاله دوی تربیه کړی او بیا په ډېرو خواریو تر دې ځایه را رسولی؛ اوس دا ډول خبري فقط هغوی ته د یو مؤقت، کاذب مورال ورکولو لپاره دی.

دویم دا چې ناټو چونکه د وارسا د نظامي بلاک په مقابل کې ایجاد شوې، او د وارسا جانشین موجوده روسیه او په څنګ کې ورسره چین هغوی دځان تاریخي ستراتیژیک حریفان ګڼي، اوس چې ناټو په ناڅاپي شکل په افغانستان کې شکست خوري او خپلي قواوې د اهدافو د ترلاسه کولو پرته وباسي؛ نو دا د خپلو سیمه ایزو حریفانو په وړاندې یو درونډ شکست تلقي کیږي، زه ګمان کوم چې د ناټو د سرمنشي-دا ډول څرګندوني همغو تاریخي سیالانو ته داسي یو پیغام ورکول غواړي چې له افغانستان څخه زموږ وتل، زموږ د خوښې کار دی، او دا چې اوس وځو او یا ځنډیږو؛ دا مو هم د خپلې خوښې چاره ده. حالانکه حقیقت دغسې نه دی، ناټو ته اوس بل هیڅ آپشن پاتې نه دی فقط دا چې په قطر کې له اسلامي امارت سره د امریکا د شوي تړون په آساس به په خپل وخت له افغانستانه خپلي قواوي باسي، کنه نو د تېرو دوو لسیزو په څیر به له نورو ځاني او مالي تلفاتو سره مخ کیږي، خو ګټه به یې صفر وي.

**څرک: دکابل ادارې خصوصاً د ارګ مامورین د امریکا نوي ولسمشر بایډن ته خوشبینه دي، چې له زوال او شړېدو به یې وژغوري او لکه ټرمپ، یومخ به له افغانستان څخه زړه توری نه وي، ستاسي له نګاه نه، آیا بایډن به نور وغواړي چې په افغانستان کې دې د امریکایانو د سر او مال په زیان جګړه نوره وغځیږي او د دوحې تړون دې مختل شي؟**

موسی فرهاد: اصلاً د کابل رژیم د چارواکو اوسنی هڅي چې د خپل قدرت د بقا لپاره یې کوي؛ ډېري سطحي دي، دا څکه چې هغه متل دی، وای اوبو اخیستی څک ته هم لاس اچوي، ربنتیا هم له کله نه چې لومړی له امریکا سره مذاکرات پیل شول او بیا تاریخي تړون لاسلیک شو، له هغه وروسته د پروسې د تعمیل مرحله وه لکه د بندیان د خلاصون او داسي نور... په دې ټول جریان کې هیڅ داسي یو ګام پاتي نشو چې د کابل ادارې چارواکو دې هغه اخیستی نه وی، ترڅو دا سلسله تخریب او د امریکایانو د خروج مخه ونیسي، او یا لږ ترلږه د خپلو وسلو او پیسو د ترلاسه کولو مدارک یې په یوه نه یو شکل جاري وساتل شي.

په دې وروستيو کې ځينې جنگسالاران هندوستان او نورو هيوادونو ته هم په نواتي وليږل، ترڅو که امريکايان نه پاتېږي نو هندوستان دې د دوی اکمالات په غاړه واخلي.

په دې برخه کې چارواکي له ټرمپ، خليلزاد، مايک پمپيو او په ټوله کې د ټرمپ له ادارې څخه په زړه کې ناراضه وو، دوی دا گڼله چې امريکايي اشغال فقط ټرمپ پای ته رسول غواړي، او عسکر باسي. نو ځکه يې زړونه په جوبايډن پسي وتړل، ترهغو پورې يې د سولې پروسه تخريبوله چې ترڅو د امريکا ټاکنې ترسره شي.

د دوی دا هڅې ځکه سرې سطحي بللی شي، چې دوی بايډن ته په دې نظر کتل چې هغه خو په ټاکنو کې د ټرمپ سيال دی، نو کيدای شي د افغانستان د اشغال په پای ته رسولو کې به هم د هغه مخالف وي. حالانکه د دوحې مذاکرات د امريکا د ستراتيژۍ له مخې ترسره شوي، نه دا چې يوازې د ټرمپ شخصي پلان و.

او دا هغه وخت لا ښه په اثبات ورسيده چې د جينيوا کانفرانس کې له افغانستان سره مرستې ټولو نړيوالو غړو د سولې د رواني پروسې له پرمختگ سره وتړلې، مطلب دا چې نړيوالو هم ومنله چې اشغال به ختميږي، امريکا به وځي، بين الأفغاني مذاکرات به مخته ځي، د افغانانو د خوښې نوی حکومت به رامنځ ته کيږي، بيا به نړيوال ورسره مرستې کوي.

دويم دا چې دوحې ته د امريکا د خارجه وزير مايک پامپيو راتگ او هلته د اسلامي امارت له مشرانو سره د معاهدې د ښه تعميل په اړه بيا ټينگار، ثابته کړه چې د امريکا د ولسمشر په تبديلۍ سره د دوحې تړون له منځه نه ځي او نه دا د اشخاصو مسئله ده.

له همدې ځايه موږ ويلی شو چې د کابل د چارواکو کاذبه هيله مندي، فقط د اوبو اخيستي په شان ځک ته لاس اچول دی. نور هيڅ نه.

**څرک:- فرهاد صيب!** له وخت راکولو نه مو ډېره زياته مننه.

**موسی فرهاد:-** له تاسو نه هم مننه. بريالي اوسئ. پای ....!

# کنفرانس ۲۰۲۰ جینوا

**جمیل اکمل**

تمامی کنفرانس‌ها (کنفرانس توکیو در ۲۰۰۲ م و کنفرانس بروکسل در ۲۰۱۶) یکی پی دیگری بسته‌های کمک‌های مالی را به افغانستان تخصیص داده‌است تا افغانستان در عرصه‌های گوناگون پیشرفت‌های قابل ملاحظه‌ی داشته‌باشد.

این در حالی‌ست که افغانستان با وجود کمک‌های هنگفت و بی‌شمار نه تنها این‌که چندان پیشرفت نکرد، بلکه میزان فقر، بیکاری، فساد، ناامنی، بی‌ثباتی سیاسی و نا امیدی افغان‌ها نسبت به آینده شان به‌طور روزافزون در حال افزایش بوده‌است. زیرا بخش اعظم این کمک‌ها توسط برخی حلقاتِ نزدیک به حکومت و مفسدین به یغما برده شد.

کنفرانس ۲۰۲۰ جینوا نیز در حالی برگزار شد که افغانستان هنوز هم لقبِ ناامن‌ترین جغرافیای دنیا و فاسدترین دولت جهان را در پروفایل خود دارا می‌باشد. بناءً تعهداتی که از طریق این کنفرانس به افغانستان صورت می گیرد، هم‌مانند سایر کمک‌هایی قبلی - که به‌جز پُرسازی کیسه‌های برخی‌ها- تاثیرات ملموس و تغییرات واقعی در زندگی مردم افغانستان نخواهد آورد.

# د ننګرهار والي محترم ملا محمد عیسی اخند

**دکابـل مـزدور رژیـم سږکـال ډیـره هڅـه وکـړه چـې ننګرهـار کـې داعشـي ملیشـي یوځـل بیـا اسـتخدام کـړي خـو دالله تعـالی پـه نصرت یې مجاهدینو مخه ډب او شوم عزائم یـې خنثـی وګرځـول**



مرکوال- قاري حنیف

بسم الله الرحمن الرحیم

**پوښتنه ـ** دننګرهـار ښـاغلی والـي الحـاج ملامحمـد عیسی اخند صاحب خوښ یو چې لـه ډیـرو مصـروفیتونو سره حاضـر شـوې تـر څـو د څـرک مجلې څـو پوښـتنو تـه ځواب ووایاست، که تر هرڅه مخکې د ننګرهار پـه سږني جهادي او عمـومي وضـعیت رڼا واچـوئ، چـې د اسـلامي امارت سلطه او کنټرول څومره دی؟ پـه خـاص ډول هغـه سیمې چـې تیرکـال د داعـش لـه ملیشـو تصـفیه شـوي وې دهغو حالت څنګه دی؟ تاسې د هغـو سـیمو د امنیـت، بیـا رغونې، تعلیم او نورو اړتیاو لپاره مو تر دې دمه څه تـدابیر ترلاس لاندې نیولي او یا عملي کړي؟

**ځواب-** بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله وحـده والصـلاة والسـلام علـی مـن لانبـی بعده "محترمه تاسـې او ستاسـې ټولې اداري اولوسـتونکو ته!

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته !

محترمه الله پاک دې مـوږ او تاسـو ټولـو تـه د دیـن د خدمت کولو توفیق راکړي.

**وبعد:** تاسوته بهتره معلومـه ده دا هغـه ولایـت دی، چې د داعش ملیشو څخـه پـه لـوړه کچـه متضـرر شـوی او ځپل شوی وو، ځکه اولس تـه هـم پـه ډیـره انـدازه خسـاره رسـیدلې وه او مجاهـیدینو تـه هـم ، داعـش او حکومـت داسې ظلمونه کړي وو، چې د هغو د یادولو تـوان بـه یـو بـا احساسـه مسـلمان ونـه لـري، ځکـه دې خلګـو دلتـه داسـې اعمال کـړي وو، چـی نـه روسـانو کـړي وو، نـه چنګیزیـانو کـړي وو اونـه امریکایـانو کـړي، خـو للـه الحمـد، چـې اسلامي امارت ده سترې قربانۍ او د ننګرهـار د اولـس پـه همکارۍ باندې الله ج ټوله سیمه د دې پلیتې فتنې څخـه خلاصـه کـړه، کـومې سـیمې چـی د داعـش ملیشـو څخـه خلاصې شوې وې په هغو سیمو کې یـو ځـل بیـا د اولـس خلک ځای پرځای شول او خپلې ورځنۍ چـارې یـې پیـل کړې،او ده خپلوکښتونو په بیارغونه یی پیل وکړ،

د امـارت مجاهیـدین کلکـه څارنـه کـوي او ده خلکـو یې ټول مشکلات تریوحده حل کړي دي،الحمدلله اوس د ننګرهـار اولـس پـه ډیـره انـدازه خوشـحاله دی، د اسـلامي امارت د ښه چلند او امنیت څخه د تعلیم اوتربیـې لپـاره د اسلامي امارت د تعلیم او تربیـی مسؤ لـین تـر خپلـه وسـه پوره کوښښ کوي، هم د مدارسو له لارې، هـم د مسـاجدو له لارې اوهم د مکاتبو له لارې،دوی هڅه کوي د تعلیم او تربیې ښه زمینه خلکو ته برابره کړی.

د اسلامي امـارت بیـا رغـونې کمیسـیون لـه لارې، د مؤسساتو له لارې یا په مستقیم ډول د اسـلامي امـارت لـه لارې خلکو ته د مرستو زمینـه برابـره ده اسـلامي امـارت

هم کومک ورسره کوي او د مؤسساتو له لارې هم زمینه ورته برابره وه.

**پوښتنه :** د دوحې د تړون د درناوي په خاطر د اسلامي امارت نظامي تګلاره تعرضي نه وه بلکې دفاعي وه ترڅو چې د کال پسرلني عملیات هم اعلان نشول خو د کابل ادارې له همدغې موقع نه استفاده کوله ویلی شئ سږ کال د ننګرهار په کومو سیمو کې مزدور رژیم زیاته هڅه کوي ترڅو عملیات ترسره کړي او ایا کومې لاسته راوړنې هم لري او کنه؟

**ځواب:** لله الحمد امارت د ټول اُمت مسلمه هیله او امید دی، کوم تعهد چې اسلامي امارت د دوحی په تړون کې کړی لله الحمد امارت په هغه باندې وفا کړې ده او زموږ ذلیل دښمن د تړون څخه په استفادې سره د تړون له اصولو تیری کړی، خو بیاهم د امارت سر ښندونکو مجاهدینو داسې جواب ورکړی او ورکوي یې چې دا به د دوی لپاره تاریخي ګزارنه وي او دي

دښمن د ننګرهار ولایت د شیر زادو ولسوالۍ کودیخیلو په سیمه پراخ مسلسل عملیات وکړل حتی داسی عملیات یی هم وکړل چې د داود قلعه په نامه سیمه یې لس ورځی مسلسل بریدونه تر سره کړل په هره ورځ کی درې واره اوڅلور واره ده جیټ، هیلوکپټر او ډرون د بمبار په بدرګه سره تعروضونه کول، خوبیاهم الحمدلله خپل مقصد ته ندي رسیدلي داخو لا څه کوې چې خپل مقصد ته ندي رسیدلي بلکه نورې سیمې یې هم د لاسه ورکړي او همدا رنګه مالي او ځاني تلفات یې هم ډیر لیدلي، د خوګیاڼو ولسوالۍ ده زاوې پرسیمه یې هم پراخ تعروضونه وکړل خو لله الحمد خپل مقصدته ندي رسیدلي که څه هم دښمن باربار دا ادعا کړې ده چی موږ خپل مقصد ته رسیدلي یو! اوس فلحال هم دشمن تعروض کړی دی او د بعضو سیمو د نیولو ادعا یی کړې ده لکه خدر خیل یانورې بعضی سیمې! په زاوه کې خو مطلق د دښمن ادعاوې په کلکه ردوو اوس هم هغه سیمی د مجاهدینو په لاس کې دي خو دښمن د تعروض په حال کی دی شا اومخ ته کیږی د بمبار په بدرګه باندی، خوپه دغه تعروضونو کې چې په دې ولسوالیو کې یې کړي دي لکه سرخرود، شیرزاد، خوګیاڼي... د دښمن ترسلو نه ډیر یا څه کم هاموي ټانګونه او رینجر موټرونه یانور وسائط له مابین تللی دي،په خپل وخت سره یې مونږ شواهد هم وړاندې کړي دي چې دښمن خپل مقصد ته ندی رسیدلی خاص تبلیغات او پورو پاګند کوي، مجاهیدینو لله الحمد په تیرکال کې ډیرې لاسته راوړنې درلودې په خوګیاڼو، شیرزادو، حصارک، سرخرود، پچیر،چپر هار اوهم د ولایت په نورو ولسوالیو کې ښه لاس ته راوړنې لري دا لا څه چې د دښمن د تعروضونو دفاع یی کړې ده د دښمن د تعروضونو د دفاع په نتیجه کې یې د دښمن له لاسه د دیرشو څخه بیا تر څلویښتو پورې پوستې فتح کړي ! او مجاهیدنو ته ډیر غنیمتونه، هاموي ټانګونه اونور وسائط په لاس ورغلي، حتی د دښمن دوه هلي کپټر د حصارک په ولسوالۍ کې رانسکورې شوې د مجاهیدنو په سیمه کې ولویدې اوهغه کماڼډو عسکر چی د ولسوالۍ د کومک لپاره راغلي وو هغه ټول پکښې مړه شول دا مو اجمالي لاسته راوړنې وې چې ذکر مو کړې درته

**پوښتنه :** له داعش څخه د تصفیه شوو سیمو په باب د کابل رژیم شیطاني او استخباراتي حرکات څه وو او څه دي؟ داسې خو به نه وي چې دغه ملیشې په سیمه کې په یو او بل نوم یو ځل بیا ځای پر ځای کیږي؟ ایا تاسي سربیره په خپلو جهادي تدابیرو، له ولس سره هم په دې باب همغږي لری کنه؟

**ځواب:** دښمن باربار‌دا حرکتونه وکړل او دا پلانونه یی جوړکړل او جوړوي یې، چې د داعش ډله په یوه نامه اوبل نامه په دی سیمه کې فعاله کړي خولله الحمد د دښمن ټول پلانونه تر دې دمه ناکام دي د اسلامي امارت مجاهیدین اود اولس خلک پوره ورته بیدار او ورته متوجې دي، که څه هم د کابل غلامه اداره اوس هم اخته ده، چې د داعیشانو ده پاتې شونو څخه د مرګ قطعه جوړه کړی ده، په بعضو نظامی عملیاتو کې یې استعمال کړې هم دي خو الحمدلله نتیجه یې نده ورکړې

**پوښتنه:** محترم والي صاحب د ولس ستونزو ته د خپل توان مطابق څومره رسیدګي کوئ؟ مثلا عامو خلکو ته مو دا زمینه برابره کړې ده ترڅو د خپل مظلومیت غږ

په اسانۍ تر تاسي در ورسوي حتی د امارت له کوم چارواکي څخه هم که شکایت ولري ترتاسي خپل فریاد رسولای شي که ممکن وي یو څو مثاله یې وواياست؟

**ځواب-** د خپل توان او د اوسني شرائطو مطابق هم مې د منطقې د علماوو سره او هم د منطقې د سپینږیرو او مخورو خلکو سره په مستقیم ډول رابطه ساتلې ده اوهم مو یومشخص ځای ورته ښودلی دی که د چا عریضه ده که د چا ملاقات دی تر خپله وسع مې ورته رسیدګي کړې، بلکې په هره ولسوالۍ کې د ولایت خپل نماینده ګان یا مسؤلین لرو چې هغه د ملکي مسؤل او نظامي مسؤل په نامه دي نو هغو ته د هرچا لاس رسی کیږي، که باالفرض ودغو ټولوته د چا لاس رسی وه نه شي نوبیا د سیمیزو شکایاتو نمایندګان لرو خلک هغو ته مراجعه کوي اوموږ ته هغه نماینده ګان د خلکو شکایت او مشکلات راوړي موږ یې بیا په حل کې کوشش کوو

**پوښتنه:** د کابل اداره وایي چې د ننګرهار په هغو سیمو کې چې د اسلامي امارت تر واک لاندې دي د بیارغونې د کارونو په مخ کې خنډ جوړوي او مؤسسات په ارامه نه پرېږدي ترڅو فعالیت وکړي شرائط ورته سختوي دغه تورونه ترکومه حده حقیقت لري؟

**ځواب:** نه دا د غلامې ادارې تبلیغات دي په هره سیمه کې چې هرچا د سړک یا د پله یا د بل داسی کار چې عام المنفعه وي اسلامي امارت یې مخنیوی نه دی کړی بلکې د همکارۍ ژمنه یې ورسره کړې ده، دا چې غلامه اداره او یاهغه مؤسسات چې هغه د غلامې ادارې یا د امریکایانو لپاره خدمت کوي نو هغه نه غواړي په هغه سیموکې چې د امارت ترکنټرول لاندې دي داسې کار وکړي چې هغه د اولس مشکلات ورباندی حل شي، ځکه د افغانانو سره او بالخصوص د اسلامي امارت د مجاهدینو سره بنیادي ټکر لري نو ځکه نه غواړي چې د امارت د کنټرول په سیمه کې دې د بیا رغونې کار وکړي دا خو لا څه چې کار وکړي هنوز د امارت د مجاهدینو رنګ بده وي چې زموږ د کار مخنیوی کوي، که بالفرض اسلامي امارت مخنیوی کړی وي دوی دې یو مثال پیش کړي.

**پوښتنه :** په پای که دننګرهار عام ولس ته څه پیغام لرئ ترڅو نور هم د اسلامي امارت له چلند او تګلارو څخه مطمئن ووسي مهرباني وکړئ؟

**ځواب:** موږ د ننګرهار ولس اوټولو افغانانوته دا پیغام لرو، چې امریکایان اودا غلامه اداره د مسلمانانو په ګټه ندي ځکه ددی شل کلنۍ دورې په جریان کې یې ده افغانستان مظلوم اولس په ډول ډول ظلمونو او شکنجو په یوه نامه اوبل نامه هغه لکه داعش یا اربکیان یا پاڅونوال یاسنګوریان یا ملي پولیس یا ملي اردو یا د کمنډویانو د دغو ټولو په نامه یې افغانان هسې وځورول چې په تاریخ کې یې موږ مثال نلرو که څه هم دوی د افغانیت اود وطن د دفاع دعوه کوي، نوکه یوڅوک د وطن د دفاع په نامه یا د افغانیت په نامه وي هغه خو داسی عمل نه کوي! د افغانانو سره یا د خپلو خلکو سره لکه دې غلامې ادارې چې وکړل نو زموږ پیغام یوځل بیا خپل مجاهد ولس ته دا دی، چې دانه افغانان دي نه د افغانانو دوستان دي یواځې او یواځې دوی د امریکایانو او د دنیا د نورو کفارو لپا په خدمت ګمارل شوي دي، هوښیار او ځیر اوسئ چې نور ستاسو بچیان ددغو ذکر شوو ډلو په نامه درته استعمال نکړي، ځکه موږ ددوی ده ښیګڼې یو مثال په ټول افغانستان کې نلرو بې له ځورونې او ظلمه.

مرکچي —

له وخت را کولو دې یوه نړۍ مننه محترم

له تاسو هم مننه کور مو ودان. —محترم والي صاحب







# په هېواد کې وروستۍ خونړۍ افسانې!!

محسن پکتین

په دې وروستیو کې د ارګ قوماندانۍ د سولې د سبوتاژ د هڅو په برخه کې په شف شف پسې دا دی بسته او تازه شفتالو په خوله واخیست، غني به چې سرې کربښې کشولې، بیا ژېړولې او ډېر نور...، صالح به چې ویل د بندیانو پر۶میاشتې ځنډولو مو نړۍ ته وښوده چې په خپلو پرېکړو کې خپلواك او د دوحې تړون د توافقاتو د ننګولو وړتیا لرو، سرور دانش او نورو یې هم ورته کړنې او ځرګندونې درلودې، ورسره په یو مهال یې د سولې او هغې ته د ژمنتیا نغاره هم په درز کې وهله.

خو له کابو دوه کاله ناندریو، سختو کشمکشونو او د ځینې بنسټونو له روزنیزو کورسونو وروسته بیا هم نیمګړې پلاوي یې د بین الأفغاني مذاکرې په نوم دوحې ته له رسېدو سره سم ډېر څه روښانه کړل، امرالله صالح ته پر اصطلاح د دوهم تن په حیث په کابل کې د امنیت چارې ور کړل شوې، یانې هغه چې د روانو وحشتونو او خونړیو بریدونو د عامل او اعلی سر قوماندان مرستیال دی، نو باید پر خپل لاس، په مستقیم ډول او بلا واسطه د امنیت سرچپه کړنو (نا أمنیو) مدیریت وکړي، وده ورکړي او داسې پېښې پلان او بیا تطبیق کړي چې ورسره د بین الأفغاني مذاکرې پروسه بشپړه شنډه او له منځه لاړه شي.

په لومړي سر کې یې د دغې برنامې غولونکې برخه پلې شوه چې ورسره ځینې وړې نا امنۍ او جنایي پېښې غلې شوې، په دې مانا چې د سولې هڅو سبوتاژ ته د لازیاتې پاملرنې په پار د یادو پېښو پر ځای په نوې بڼه سیاسي پېښې او هغه بریدونه طرحه کړي چې ورسره د سولې هڅې پڅې او له خنډ سره مخ شي، ورپسې یې په تطبیقي بڼه د کابل له پوهنتونه د یوې خونړۍ پېښې په شکل را پیل کړې.

دغه برید د یاد پلان د تطبیق لومړنۍ ناکامه هڅه وه چې پېښه یې صالح له ځمکني واقعیت او کره ثبوتونو سره په تقابل پر طالبانو ورتپله، دغه تقابل یې د ورځې په جریان کې د رسوایۍ یو داسې تسلسل رامنځته کړ؛ چې له هر ځل تپلو وروسته شواهدو د تېرځل په پرتله لا زیات طالبانو ته برأت ورکاوه، په دې ډول تر مازدیګره او بیا د شپې مهال د امنیتي ځواکونو له خوا د سیمې په کلابندۍ کې د نامالومو !! کسانو پر حواله د بهرنونو ځوړندولو راز افشا کېدو پېښه بشپړه پر صالح تاوان کړه.

همدا رنګه د داعش په نوم د پېښې د پړې له منل کېدو وروسته صالح په لنډ وخت کې د خیالي داعش او کټ مټ د هغوی په نیوفورم کې یو ویډیو کلیپ له ترتیبولو او بیا سانسور وروسته رسنیو ته پر لاس ورکړ چې پکې یې د پړې منلو خبر بېرته واخیست او برید یې په ښکاره ډول د طالبانو کار وباله، یاد کلیپ که له یوې خوا برید پر صالح واړاوه، له بلې خوا یې دا هم په اثبات ورسوله چې په

ميلمستونونو او ميلمستون وزمه زندانونو کې د داعش افراد د صالح په واك کې دي.

ورپسې د عادل پنجشېري په نوم يو بې ګناه وګړي څخه په زور اعتراف اخيستلو هغه افسانه هم رسوا شوه چې ګواکې د طالبانو په غوښتنه يې د پوهنتون بريد پلان کړی، د نوموړي ماما چې په سرپل ولايت کې د صالح د ډلې موټر چلونکی دی ويلي :عادل دوه/درې کاله وړاندې د کابل جلال اباد پر لويه لاره د نشيي توکو وړلو په تور نيول شوی چې هلته هم بې ګناه و، اصلي تورن د سامان څښتن و چې له نيول کېدو ۹ مياشتې وروسته خوشې کړل شو، اوس پر هغه علاوه د زندان په دننه په ترهګری او د پوهنتون د پېښې په تړاو تورن شوی او بې ګناه دی، لنډه دا چې د صالح دې غورځو پرځو له بشپړو ثبوتونو او کره اسنادو سره د پېښې پړ د خيالي داعش له آدرسه بېرته همده ته ورساوه.

دا چې که صالح په پلان کې بريالی شوی وای، نور يې لا څه غوښتل او څه به يې کول؟ په لنډ ډول خپله د پېښې له نوعيت، لګول شويو بينرونو او را پورته کړيو اندېښنو، پوښتنو او ارزونو څخه مالوميږي، خو چې بريالی نشو؛ د شنونکو په اند د پوهنتون له پېښې د هغې له منفي اغېزو او د برنامې پاتې برخې له تطبيقولو څخه د خلکو پام اړولو د چارې اړتيا وه، له همدې امله د پېښې په درېيمه او څلورمه په کابل او هلمند کې د طلوع او ازادي راډيو د دوه و مخکښو خبريالانو او په ننګرهار کې د يوه محصل وژنې هم پر صالح تاوان شوې، خو چې له دې تولو سره بيا هم هغه د طالبانو پر حواله پر تعليمي ادارو د ممکنو بريدونو خبر ورکړ، نور هم په دې پېښو کې د نوموړي ښکېلتيا کره شوه او د ورته بريدونو د پراختيا اندېښنې لازياتې شوې.

صالح چې نه په ښکاره رسماً کومه استخباراتي دنده او نه د ورکړي خبر پر اساس د مالوماتو خپل کوم درك لري او دنده يې هم د جګړې پر مټ د داسې پېښو مخنيوی دی، بيا هم چې هغه د خپلې دندې پر ځای له استخباراتي مالوماتو او خبرداري مخکې مخکې دا ډول خبر ورکول خپله دنده ګرځولې خو د پېښو په مخنيوي کې پاتې راځي، يواځې د کره شواهدو او قوي اسنادو په توګه څرګندوي چې په اوس وخت او حال کې دا ډول بريدونه او مخفي کړنې چې له هر آدرسه ترسره او هر ډول ښودل کېږي يواځې د نوموړي د خپل پلان له مخې دي او بس.

د خيالي داعش رنګين يونيفورم همدې صالح خپلې اړوند ډلې ته ور په تن کړی چې خپل پل پرې ورك کړي، خو کلا وحاشا.

پر پوهنتون له لومړي ډز سره سم د بريد ټول جريان پر طالبانو تاوانول، خو په کلابندۍ کې د بينرونو په اړه ناخبري؟ د طالبانو د بريدونو چې پړه يې هم ومني له پلان څخه يې ناخبر، خو د خپل خبر له مخې ممکن بريدونه له پېښېدو پرته هم د طالبانو؟ بريدونه د طالبانو، خو چې هغوي کلك رد کړل بيا د کابل او هلمند پر خبريالانو د بريد عاملين لا تر اوسه نا مالوم؟ د طالبانو هېښونکو تکتيکونو او په دولتي ليکو کې له نفوذ څخه ښه خبر او امنيتي تدابير هم د بشپړ ډاډ وړ، خو بيا هم د نامالومو کسانو؟؟؟ لخوا له راکټونو تخته موټر د ښار منځ ته رسېږي او له ۲۴ څخه ۲۳ راکټونه پر ښاريانو توغوي؟ سولې ته تر طالبانو زياته ژمنتيا او لېوالتيا، خو خپله هم دا ډول سولې ضد کړنې ترسره کوي او طالبان هم ننګول او هڅوي؟ او...دا او ډېر نور صالح د هر ډول پېښو د اصلي عامل په توګه را پېژني او بيا د طالب بنديانو د ځيلو په موخه زندان ته د وسلو انتقال او د داعش په نوم پرې د بريد پلان نور هم د وروستيو خونړيو پېښو لور ته د صالح لمن ور ټينګه کړه چې طالبانو يې د ياد پلان په اړه له خپلو کشفي درکاتو څخه د دقيقو مالوماتو پر مټ ډېر زر او پر وخت خبر ورکړ.

رښتيا او يقيني خو داعش ډله له لومړي سره افغانستان ته د اشغالګرو له لوري د يوې استخباراتي پروژې په توګه را وارده شوې، بيا تر هغه چې دلته يې په ښکاره وجود درلود، هم د اشغالګرو پر تمويل او هر اړخيز

ملاتړ بسیا وه او په پای کې هم همدې اشغالگرو او مزدورانو يې افراد د طالبانو له منگولو له ایستلو وروسته د خپلو استخباراتو په چوکاټ کې د یو گروپ په توگه خپلو مېلمستونونو ته یووړل، په افغانستان کې د داعش بشپړه ماتې ومنل شوه او په ټوله کې دا یو منلی حقیقت وو/دی چې داعش ډله د ارگ قوماندانۍ برخه وه او له ماتې وروسته يې افراد بېرته همدلته را ټول شول.

خو اوس بیا هم له همدې ځایه خیالي داعش د صالح له کسانو جلا؟؟ او د هغه د موازي ډلې په حیث تلقي کېږي او خپلو استخباراتي کسانو ته د خونړیو او له قساوت ډکو بریدونو لپاره د داعش نوم او یونیفورم ور په تن کوي، له دې سره سره يې پر ملکي اهدافو بریدونه له پړې منلو سربېره پر طالبانو ور تپي چې د خپلو بریدگرو یو ډول ننگه ده، خو د طالب په نوم بندیانو باندې بریدونه چې پړه يې پر طالبانو نشي ور غورځېدلی بیا داعش ته منسوبوي چې اصلاً وجود نلري، یوازې نوم او یونیفورم يې صالح د پېښې په وینو سور لاسو کسانو ته ور په تن کړی وي.

کوم سالم عقل به دا ومني چې پر بندیانو بریدونه د خیالي داعش کار دی، نه د صالح او نه د طالبانو، خو پر ملکي اهدافو بریدونه بیا د طالبانو کار دی، نه د پېښو پر وینو د سور لاسو استخباراتي کسانو او نه د صالح؟، بلکې صالح يې یوازې خبر ور کړی او نور خلاص؟؟، کابل کې تر بل هر ولایت امنیتي حوزې او پرسونل هم پرېمانه دی، خو د صالح له لوري پلان شویو بریدونو په کنټرول کې پاتې راځي.

لکه چې مو وویل داعش د اشغالگرو استخباراتي پروژه او په افغانستان کې د مزدورو استخباراتو برخه ده چې په تمویل، ساتنه، د بریدونو په پلان گذاري، د طالبانو له منگولو پر ساتلو، په کابل او نورو سیمو کې يې پر خوندي کولو تورن چارواکي هم مالوم او د کابل ادارې له دننه يې نورو گڼو چارواکو له شواهدو او ثبوتونو سره خبر ورکړی او غبر يې پورته کړی دی، پر دې علاوه تازه د ولسي جرگې مشر خبر ور کړی چې د صالح (زرغون بهیر/روند سبز) ډله له بهرنیو استخباراتو څخه سرچینه اخلي، هدفي وژنې هم د هغه په پلان گذارۍ ترسره کېږي او رسماً يې له ارگ څخه د صالح استعفاء غوښتلې ده، خو زر به دغه حقیقت هم د تېرو افسانو په څېر را برسېره او رسوا شي.

د څېړونکو په اند په هېواد کې وروستۍ خونړۍ افسانې صالح په ښکاره ډول د سولې هڅو د مخنیوي په غرض په کار اچولي، ترڅو که څه هم د ورځو په شمار وي، خو د واك په گدۍ پاتې شي، نور صالح او د ارگ بانډ خپله پر دې پوهېږي چې د طالبانو او اشغالگرو ترمنځ له مذاکراتو تر پایه منزوي و او بیا تر اوسه د دوحې د تړون توافقاتو پر وړاندې سرو کرښو او گڼو خواریو، د سولې هڅو د ټکني کولو لپاره لاس پښې وهلو، بې درېغه وحشتونو ترسره کولو او هر ممکن زور ازمایلو يې نتېجه ور نکړه، نو ورپسې يې روانې کړنې هم نه د سولې مخه نیولای شي، نه د تېښتې له نیمې لارې اشغالگر را گرځولای شي، نه پرې ولس نور تېر ایستلای شي، نه يې ملاتړ پرې را خپلولای شي، نه په واك کې د دوي پاتې کېدل تضمینولای شي او نه ډېر نور...بلکې لا په تېر پسې دا کړنې يې هم سرچپه پایله لرلای شي.

صالح او د ارگ بانډ چې څو لسیزې يې د پردیو په چوپړ کې پر ځان شپه ورځ یوه کړې او هڅه يې کړې ده چې د تر ټولو وحشي ډلو (کی بي جي، بلیکواټر کمپنۍ، ي آئي ای، گاونډیو استخباراتو او ...برخه يې وگرځي او ځیني پرې بریالي شوي هم دي، نو په دې کې شك نشته چې د صالح وروستۍ کړنې د بهرنیو استخباراتو د پټو ستراتېژیو له مخې د پردیو گټو لپاره وي/دي او له همدې امله خو يې کړنې د ځان په حق کې سرچپه پایله ورکوي، خو په واك کې د پاتې کېدو خیال يې چې اوضاعو ته پر کتو محال بربښي د دوي د شخصي خو ناوړه گټو پر اساس دي، چې په تر لاسه کولو کې يې وحشي کړنې ترسره کوي، خو عواقبو ته يې پاملرنه نکوي چې له یوې

خوا پردي استخبارات په تېر ایستنه ناوړه استفاده تري کوي او نور یې د ولس او طالبانو رحم ته پرېږدي، له بلې خوا لازیات د ولس د نه بښنې وړ ګرځي، نو لکه صالح او د ارګ قوماندانې چې عسکر، پولیس، اربکیان او امنیتي کارمندان او ولسي وګړي له خپلو ګټو ځاروي، اشغالګر او پردي استخبارت همدوي د خپلو ګټو قرباني کوي، نور د صالح او ارګ ګریبان او د ولس لاس یې او همدا یې د دغو کړنو د سرچپه پایلې انځور دی ...

پای

# د خولۍ په سر کول!

اول: لونګۍ چې په عربي عمامة ورته وایي رسول الله (صلی الله علیه وسلم) په سر کړې ده د رسول الله ( صلی الله علیه وسلم) سنت ده البته سنت زوائد چې حکم مستحب ده. حضرت عمرو بن حریث له خپل پلار نه روایت کوي چې:

كانّي أنظر الى رسول الله (صلى الله عليه وسلم) على المنبر و عليه عمامة سوداء ارخى طرفيها بين كتفيه. (رواه المسلم)

یقیناً داسې لکه زه چې اوس رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ته ګورم چې په منبر ناست و، توره لونګۍ یې تړلې وه او د لونګۍ دواړه طرفونو یې د اوږو په مینځ را اچولي وو.

## خولۍ:

ابو مختار محمد عبدالرؤف حنفي لیکي:

علامه ابن قیم په خپل کتاب (ذاد المعاد) کې لیکلي دي چې : رسول الله ( صلی الله علیه وسلم) به کله نا کله صرف خولۍ استعمالوله او کله نا کله به یې لونګۍ استعمالوله او کله به یې پوځې خولۍ په سر کوله ، مطلب دا چې په کوم وخت به یې کوم لباس مناسب وباله هغه به یې استعمالوه. (زاد المعاد ص ٣٦ – عمدة الاحکام ص ٢٠٩ )

همدارنګه موقع طریق الی الله لیکي: الإجابة : القلنسوة كان يلبسها النبي صلى الله عليه وسلم، والهدي العملي في عصر النبي صلى الله عليه وسلم وصحبه ....له صور ثلاثة كان يفعلها النبي صلى الله عليه وسلم، وهي القلنسوة، أو بالعمامة فوق القلنسوة، أو بالعمامة دون القلنسوة .فستر الرأس أحب إلى الله من كشفه.

ځواب : خولۍ د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) لباس و او دا عمل د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) او صحابه و په عصر کې موجود و. د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) عادت دا وو؛ چې کله به یې خولۍ په سر کوله، کله د خولۍ له پاسه لونګۍ او کله خولۍ بغیر له لونګۍ .

## قمیص:

قمیص د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) خوښ لباس و. ام سلمه ( رضی الله عنها) وایي:

کان أحب الثیاب إلی رسول الله (صلی الله علیه وسلم) القمیص. رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ته په ټولو لباسو کې خوښ لباس قمیص ؤ. په شریعت کې د قیمص ګرده لمن ، یا ګنج لرونکې لمنې په باره کې څه قید نشته، خو هغه لباس چې کفارو او فاسقانو ته خاص وي د هغې اغوستل منع دي.

كل لباس يكون على خلاف السنة يكون لبسه مكروها و هو مثل اثواب الكفار و اثواب الفسق و الفجور و اهل الاشر (النتف فی الفتاوي ج ١ ص ١٦٢) پای

په ځمکه د لوی رب بندګي ته خلک رابلل وو، او د داسې نظام جوړولو ته ضرورت و؛ چې اسلامي احکامات ورکې پلي شي.

رازو مسئولیت د هغه چا ته؛ چې د نبي د وراثت دعوه کونکی وي، که ریښتیا د وراثت دعوهکوو؛ راځئ په هغه څه عمل وکړو، څه مو چې مسئولیت جوړیږي.

که یوازې مو وراثت تر مسجد او محراب پورې محدود شي او د نظام چلونې فکر راسره نه وي، هیڅکله بیا د نبي د وراثت دعوه نشو کولی، یو ځل که مشکل په دې حل کیدلی؛ بیا د بدر او د احد خونړۍ معرکې او د نړۍ واکمنانو ته د اسلام دعوت څه حاجت وو..؟

که سیاست او نظام جوړونه د رسول پاک طریقه نه وي او د اسلامي احکاماتو څخه خارج وي، بیا د رسول پاک صلی الله علیه وسلم په وخت کې د دوي دومره لوی نظام چا جوړکړی وو او چا یې چارې سمبالولې..؟

او که د رسول پاک طریقه وي او مونږ یې نه کوو، بیا نو وراثت څه معنا.. ؟

او که وارثان هم یو، نو ولې یې بیا د ځان حق نه ګڼو.

کفري نړۍ له اوله تر آخره په دې کوشش کې ده چې دوي سیاست او نظام د اسلام له احکاماتو څخه بیرون وګڼي، ځکه دوي په دې پوه دي، که نظام د عالم په لاس جوړ او چارې یې روانې شوې دوي به هېڅکله بیا خپلو اهدافو ته ونه رسیږي.

علماء په دې مسئول دي، چې تل او په هر وخت او زمان کې به لکه څنګه چې د امامت او تدریس چارې په مخ وړي همدا رنګه به د نظام د جوړونې فکر هم او د اسلامي ارزښونه ساتل به یې لوی هدف وي.

او دا مونږ ته د تاریخ له پاڼو ثابته ده چې کله هم د مسلمانانو رهبري او د نظام چارې علماؤ په لاس کې اخیستې وي، هماغه د امت د سرلوړۍ او عزت دوره وي او کله چې علماء د نظام د جوړونې په ځای په نورو فکرونو کې مبتلا شي هماغه بیا د امت د ذلت او بربادۍ تور تاریخ له ځانه سره لري.

د اسلامي نظام د راتلو په هیله



## ولسمشر مړ شو!!

وایي: ډېر پخوا د پاچاهي (شاهي) زمانه کې اوازه خپره شوه چې پاچا (شاه) ومړ.
شاه امر وکړه چې دغه افواه خپرونکی لومړی شخص پیدا کړئ.
له ښه ډېرو پلټنو وروسته ثابته شوه چې دغه اوازه یو سپین سرې ښځې پیل کړی وه. هغه یې شاه ته حاضره کړه.
شاه ورته ویل" ولې دې زما د مرګ اوازه خپره کړه، حال دا چې زه ژوندی یم؟؟!"
زړې ښځې ورته ځواب ورکړ: "د هیواد حالتو دې پایلې ته ورسولم چې تاسو په حق رسیدلي یاست. هغه ځکه چې د هرچا چې هرڅه زړه وغواړي ترسره کوي یې، قاضیان رشوت اخلي، پولیسان زور غږوي او کلنګ(باج) اخلي، پلورونکي ناپ تول کې کمی کوي او شیان په لوړه بیه پلوري. فریاد ته ځواب ورکونکي هم څوک نشته. هیڅوک د خلکو په فکر کې نه دي او خلک پخپل حال پرېښودل شوي ځکه مې فکر وکړ چې حتمن تاسو له دې دنیا څخه کډه کړې ده.

ابو عمر حقاني

# ایا د دوحې تړون
## له اسلامي شریعت مخالف دی؟

د دوو لورو( طالبانو او امریکایانو) ترمینځ نوولس کلنې جګړې کې د طالبانو مقاومت بالاخره امریکا اړ کړه، چې د طالبانو غوښتنې ومني او د توافقنامې پر اساس د افغانستان اشغال ته د پای ټکی کښېږدي او له هېواد څخه ووځي.

که څه هم اشغال ته د پای ټکی کېښودل او له یو ستراتیژیکي هېواد څخه وتل، امریکایانو ته ډېره سخته وه، مګر بې له دې یې بله چاره نه درلوده.

غواړم، چې د توافقنامې ځینو موضوعاتو ته اشاره وکړم:

۱ - د اشغال خاتمه : دا عمل د هېواد پوره آزادي او استقلال په ډاګه کوي .د همدې پر اساس طالبانو لومړنی او مهم هدف د هېواد د اشغال خاتمه وه، ځکه که چیرې هېواد د غربي اشغال څخه ازاد نه سي، سولې او امنیت ته رسېدل له زیاتو خنډونو سره مخامخ کېږي.

۲ - اسلامي نظام :طالبان " اسلامي امارت " هر هغه قانون او نظام چې د اشغال تر سیوري لاندې جوړ سوی وي، غیر قانوني او نامشروع ګڼي او په آزاد افغانستان کې د افغانانو لپاره د یو اسلامي نظام غوښتونکي دي، چې اسلامي قوانین پلي کړي او د ځورېدلو افغانانو ستونزو ته پوره لاس رسی وکړي او همدارنګه د ګاونډي او نړیوالو هېوادونو سره د هر اړخیز احترام څخه ډکې اړیکې ټینګې کړي، تر څو زموږ هېواد د پرمختګ او امنیت لوري ته بوځي.

۳ :بین افغاني مذاکرات : اسلامي امارت په روانو ناستو کې دا وښوده، چې دوي په افغانستان کې د یو اسلامي نظام غوښتونکي دي، چې دا نظام به د افغانانو لخوا منځته راځي او واګې به یې د افغان ولس د رېښتینو مشرانو په لاس ورکول کیږي.

۴ : مذاکرات باید د اسلامي امارت او د افغاني جهتونو ترمنځ وي :

په دې ټکي سره دا څرګنده سول، چې مذاکرات باید د اسلامي امارت او د افغانستان په سیاسي موضوع کې د ټولو شکېلو اړخونو ترمنځ وي او د کابل اداره به د یو افغاني اړخ او جهت په توګه ګډون کوي، نه د یو دولت او ټول افغان ولس د نماینده ګانو په حیث.

لنډه دا چې د دوحې په توافقنامې کې امریکایان دې ته ژمن سول، چې د افغانستان په ملي چارو کي به لاسوهنه نه کوي.

په همدې اساس د یادو ټکو څخه دا په ډاګه کیږي، چې د توافقنامې هېڅ یوه ماده د الهي شریعت او نبوي سنتو سره په ټکر کې نه ده.

بلکې یاده سوې توافقنامه افغانستان کې د تلپاتې سولې، امنیت او د افغان ولس د مړاو هیلو د ژوندي کولو په

موخه د لویو علماؤ او سیاسي مبصرینو د څارنې لاندې، د هغوي د آندونو او لاسلیکونو وروسته وړاندې سوې ده.

ځینې د سولې دښمنان چې د اسلامي شریعت او پیغمبر صلي الله علیه وسلم له سنتو ناخبره دي، بې ځایه نیوکې کوي، چې خاص د مظلوم افغان ولس په هیلو خاورې شیندي.

په توافقنامې کې دا ټکي یاد سوي وو، چې بهرنۍ هېڅ ډول مداخله د منلو وړ نده او د کابل اداره به د یو سیاسي جهت په توګه ګډون او د خپلو شخصيـ غوښتنو یادونه کولای سي، نه د یو ربښتیني نظام او د افغان ولس د غوښتنو.

کله چې د غربیانو مداخله بنده سوه، نو څو مفت خوره کسان را پاڅېدل، چې خپلو شخصي غوښتنو ته یې د افغان ولس تر غوښتنو لومړیتوب ورکړي.

او د کابل ادارې په مذاکراتي ټیم کې سولې او امنیت ته ژمن سیاسي پوهانو هم حضور نه درلود.

هغه څېرې چې واقعًا افغانستان کې د امنیت او سولې راوستلو ته پوره ژمن دي.

هغه توافقنامه چې د اسلامي امارت او امریکا ترمنځ لاسلیک سوې ده، عملي کېدونکې ده.

که هر څومره ارګ کې داخل کسان یې وغواړي یا نه!

دا تر ټولو ښه لاره ده، چې د تلپاتې سولې او امنیت لپاره مثبت ګامونه اوچت کړي او کنه دا چانس به هم له لاسه ورکړي.

په ټول هېواد کې د تلپاتې سولې او امنیت په هیله






## د خیاطانو له وسه هم نوره تېره ده!

ن ـ شفیق

د غم خیاطي یې کړې، یو وخت به یې ویل چې غني په تفسیر او سیرت کې هم دکتورا کړې، ښځه یې د قرآن حافظه ده، په تشناب کې چې ناست وي هم مطالعه کوي، څلورویشت ساعتونو کې اتلس شل ساعته په دفتر کې وي او چارې پر مخ بیایي.

د غلو، غاصبینو، ټوپکمارو ، زورواکو په سر تندر... نور نه خو یو کال وروسته به کاریګر او مزدور پسې ګرزي، نه به پیدا کیږي او ددوي په اصطلاح د هېواد ټول دښمنان یې له انزوا سره مخ کړي دي، چین او روسیه چې کله د لویو ستونزو سره مخ شي، نو د حل لپاره یې له غني پلان اخلي. او په آخر کې به یې لیکلي وو؛ چې بابا ته زړونه....

او بعضو به یې چې کله صفت کولو نو له خولې به یې ورسره سم زګونه بادېدل، په پروفایل به یې عکس پرېښود او په ترتیب به یې لیکلي وو: غني اقتصاد، صالح امنیت او دانش قانون.

خو چې نن یې نور پرتوګ له ګنډلو ووتو او د ښځیو ځای پکې نه پیدا کیږي، غرر ماشین ته یې د صالح پرتوګ ور خطا کړو او همغه د غني تکراري مدحې یې په صالح ورتاوې کړې، چې هله د غلو ، غاصبینو ، زورواکو ، قاچاقبرو ...د سترګو ازغی ...تر نیمې شپې دفتر کې وي کور ته نه ځي...

دا وطن همدغو بې ځایه مدحو او صفتونو وخوړ، چې هر سړي پسې په پټو سترګو روان یو.

# خون و جان مسلمانان افغان؛
## سرگرمی برای سربازان آسترالیا!

م میمر

یک گزارش تحقیقی نشان می‌دهد که در جریان جنگ افغانستان، نیروهای ویژه‌ی آسترالیا به تعداد ۳۹ تن از غیر نظامیان- مردان و کودکان -را قصداً کشته‌اند.

این در حالی‌ست که طبق یک تحقیق رسمی،" قتل های رقابتی "و" خون‌خواهی "در بین نیروهای ویژه آسترالیا در افغانستان یک امر عادی بوده‌است.

آنها تسلیحات یا بی‌سیم‌هایی را روی بدن اجساد غیرنظامیان قرار می‌دادند تا این‌گونه جلوه دهند که فرد قربانی در عملیات کشته شده‌است.

سربازان ارشد آسترالیایی از سربازان تازه کار می خواستند تا اسرای افغان را بکشند تا اولین" کشتن "را در کارنامه‌ی خود ثبت کنند.

اینها دقیق همان سربازانی هستند که برای تطبیق دموکراسی جبری با ارزش‌های حقوق بشری، آزادی‌های انسانی و با شعارهای تامین حقوق شهروندی، مردم سالاری و نجات مردم از فاصله‌های دور به افغانستان آمده‌اند. اما در واقعیت می‌بینیم که اینها فقط برای اهداف و منافع و اهداف خون‌آشام خود این فاصله و زمان را طی نموده‌اند .در حقیقت خون و جان ما افغانان برای سرگرمی، و مال و ناموس ما برای خواست‌های شهوانی آنها مورد استفاده قرار گرفته‌است.

این همه قتل و وحشت را صرف با یک عذرخواهی تمام کردند، گویا خون ما رنگش سفید است و یا جان و ناموس ما کدام ارزشی ندارد .پس ما باید این امر آشکار را درک کنیم که برای متجاوزین غربی تفاوت میان خون طالب و غیر طالب وجود ندارد .زیرا کفار همواره در صدد تامین منافع خود بوده‌است، و در این ۱۹ سال برای ما حضور شان جز دموکراسی جبری، وحشت و دهشت چیزی دیگر به ارمغان نیاورده‌است.

### إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ ذُو انتِقَامٍ!

اسټراليا کې د ۳۹ بې ګناه افغانانو د وژنې تحقيقاتو په بشپړېدو سره نهه اسټراليايي سرتېرو ځان وژنه کړې.

دا يو بې سارې کړنه ده، افغانستان کې په تېرو نولس کلونو کې بهرنيو قوتونو دومره ستر او بې شمېره وحشيانه جنايتونه کړي چې دا يې د فيصدي له اړخه يو هم نه پوره کوي.

رسمي شمېرې ښيي؛ چې لسګونه زره بېرته تللي سرتېري له رواني ستونزو سره مخ دي او ګڼ شمېر يې په بېلابېلو هېوادونو کې د افغانانو د بې رحمانه وژنو او شکنجو وروسته مطلق لېوني شوي دي.پای

## دهیواد پیاوړي څېړونکی، ادیب او لیکوال

# استاد لطف الله خیرخواه:

❖ مجاهدین د هغه چا فتوی نه مني، چې هغوی ان د بیت المقدس ننګه نه شي کولی!! د مجاهدینو سر خلاص دی، چې د جهاد په اړه به مجاهد ملا فتوی ورکوي او معتبره به وي او مجاهد ملا یقینا داسې فتوی نه ورکوي، چې د جهاد اهداف ونګوي.

❖ څرک مجلې داسې مهال کار پیل کړ، چې ډارنو خلکو خو ساه هم نه اخیسته. د جهادي اظهار د جمود ماتولو یو غازي کردار د څرک مجلې دی. زما یاد شي، چې ځینو خلکو به مجله ولوسته بیا به یې د شپې پټه د مسجد الماری ته راوړې وه، چې کور کې یې څوک ورسره ونه ګوري!

مرکیال: عبید -تنویر

**پوښتنه**: ښاغلی استاد لطف الله خیرخواه صاحب که لطف وکړئ د څرک مجلې مینه وال او لوستوال په خپل تعارف وویاړئ چې دې دنیاګۍ ته مو چېرته او څه وخت سترګې پرانیستي او ربښتیا د خپلې درنې علمي او جهادي کورنۍ د معرفت لورینه هم وکړئ!

**ځواب**: نوم مې لطف الله خیرخوا دی، د قاري صاحب محمود شاه زوی یم. په ۱۹۸۴ ز کال پېښور کې زېږېدلی یم. اصلا د ننګرهار ، جلال اباد ښار عربانو کلي یم. والد صاحب مې د هېواد مشهورې مدرسې نجم المدارس کې تر یوولسم ټولګي درسونه ویل. د کمونستانو د هورا جکړ د نورو علماءکرامو او طالبانو په څېر له هېواده هجرت ته مجبور کړ. په مردان «انوار محمدیه» مدرسه کې یې د دېوبند فاضلو علماءکرامو مولوي صاحب معاذ الرحمن او مولوي صاحب روح الامین رحمهما الله سره لویه دوره وکړه. دوهمه لویه دوره یې پېښور «امداد العلوم» کې اروانښاد شیخ صاحب حسن جان سره وکړه. الحمد لله د ژورې مطالعې او ښه فقاهت څښتن دی. د جهاد د دورې ټوله ملګرتیا یې خالص بابا رحمه الله سره کړې. د هغه د تنظیم د اجرائیه شورى غړی، مالي او د ننګرهار ولایتي امر پاتې شوی.

**پوښتنه**: ابتدایي، منځنۍ او لوړې زده‌کړې مو چېرته او په کومو مدرسو او علمي مراکزو کې سر ته رسولي؟

**ځواب**: لومړنۍ او منځنۍ زده‌کړې مې د خالص بابا تاسیس کړې مدرسې الهجرة والجهاد کې کړي. د لویې دورې تر کچې کتابونه مې هم دلته ولوستل. د پوهنتوني لوړو زده‌کړو لپاره نړۍ‌وال اسلامي پوهنتون ته لاړم. اصول الدین فاکولته

کې مې د تفسیر شریف دیپارتمنت کې د ایم فل تر کچې درسونه وویل. د لیسانس او ایم فل مرحلو تر منځ مې یو کال په «دارالنجاة» باغبانانو کې بیا حَل هدایه، شرح ملا جامي، مختصر المعاني او نور الانوار ولوستل.

**پوښتنه**: د معلوماتو له مخې پر هڅانده او دلسوزه قلمي مبارزې سربېره مو علمي هڅې او د تدریس اهتمام هم د ستایلو دی، که د درس او تدریس جزیات هم راسره شریک کړئ، پر اهمیت یې څه ووایئ چې په دومره زیاتو مصروفیتونو سربېره بیا هم د مدرسې درس او تدریس نه پرېږدئ؟

**ځواب**: زه چې له کومې مدرسې فارغ شوی یم، همالته - الحمد لله - تدریس کوم. د پښتو، صرف، عربي، فقهې او اصول الفقه کتابونه طالبانو ته وایم. علم سره تړاو د عربانو پر اصطلاح «متعة الحیاة» ګڼل کیږي. تدریس ستر رسالت دی او په دغسې یو حالت کې چې زموږ امت له ستر فکري او کلتوري یرغل سره مخ دی، د هر لوستي او علمي ډګر کې د اوسېدلي مسلمان وجیبه ده. له علمي پلوه پر موږ ډېر پور پاتې دی، موږ له تېرو سلو کلونو راهیسې په خپل علمي چاپېریال کې کوم تغییر نه وینو. موږ که سلګونه ځلې جګړې وګټو، خو چې زموږ علمي ثقافت تجدید، تهذیب نه شي او د وخت پوښتنې ځواب نه کړي، موږ د بریا دعوی نه شو کولی. که څه هم یوازې په تدریس دا پور نه شو اداء کولی، د علمي لیکوالۍ نشتوالي، د مناسب تجدد مخه ډپ کړې، مګر که بیا هم دومره وتوانېږو، چې د علماء کرامو د وینو او سیاهیو په ګډ رنګ لیکل شوی ثقافت وساتو ستره مېړانه به وي.

زه اکثره یو مثال وایم، چې شرح ملا جامي او مختصر-المعاني د خپل وخت ماشومانو ته لیکل شوې، اوس دا دواړه د نحوې او بلاغت اخر برید ګڼل کیږي، موږ څومره وروسته تللي یو؟!! زموږ د متونو کتابونه د لیکلو ستر لامل دا ښیي، چې همتونه د مطولو کتابونو له لوستو عاجز دي، ځکه دا متن ولیکل شو، اوس نو طالب پرېږده، ښه ملا هغه دی، چې ایله متن درته ولګولی شي!! دا کوم حالت دی؟!!

**پوښتنه**: یو مدرس او استاد باید د خپلو شاګردانو او طالبانو روزلو او تربیې ته په څومره اهمیت قایل واوسي او د دې لپاره چې د شاګردانو قیمتي وخت هدر لاړ نه شي څه کول ورته په کار دي؟

**ځواب**: مدرس او استاد دې د خپلو امجادو ثقافت او تاریخ ته وګوري، چې څه ډول خلک یې ساتلی، پاللی او پر مخ بېولی شي؟ ده ته، چې څومره خپل امت او تاریخ پیاوړی بریښي، پر همغې کچې دې ورته د راتلونکي نسل د روزلو کوښښ وکړي. مدرس او استاد که خپل امت له دې روان حالته ویستل غواړي، ودې ګوري، چې څه ډول خلک ورته په کار دي، څه ډول کار ورته په کار دی؟ خپله به پوه شي، چې ډېر ناوخته دی، وخت بیخي کم دی او کار د غرونو هومره لوړ او دروند دی.

د وخت د ساتنې لپاره او د طالبانو د علمي تلوسې ډېرولو لپاره لومړی خپلو اسلافو ته مراجعه په کار ده. د هغوی د ژوند حالات او کردار لوستلو ته اړتیا ده، چې د ابو غده رحمه الله «قیمة الزمن» او «صفحات من صبر العلماء علی شدائد العلم والتحصیل» یې ورې بېلګې دي. د رجالو او أعلامو په اړه لیکل شوو کتابونو لوستلو ترویج په کار دی. دا دوه لومړني ضرورتونه لري: یو دا چې هره مدرسه باید پراخه علمي کتابخانه ولري، چې د طالب هره تنده په کې خړوب شي. دوهم دا چې له لومړۍ درجې لیک او اړونده مهارتونه او له څلورمې درجې پورته د څېړنې او تحقیق مېتودونو د زده‌کړې او د صنفي څېړنو دود رواج شي.

**پوښتنه**: طالبانو ته کومې توصیې لرئ چې له وخت څخه ځنګه استفاده وکړي؟ څومره خپلو درسونو او مطالعې ته ځیر او متوجه واوسي، بله خبره دا چې د دیني علومو طالب ته د عصري ضروري زده‌کړو څومره اړتیا ګورئ؟ لکه د عربي او انګریزي ژبو زدکړه، د کمپیوټر او کمپوز مهارت؟

**ځواب**: طالب دې همدمره فکر وکړي، چې د همده په څېر یو تنکي ځوان ولې په ځان پورې بارود وتړل او د غزا په

لومړیو لیکو کې یې درز ورکړ؟ هغه تنکۍ غوښې، هډونه، رګونه او وینې ولې هوا ته متلاشي لاړې؟ هغه ځوان د کوم کور غړی و، که نه؟ د کومې خور ورور و، که نه؟ د کومې مور زوی و، که نه؟ د کوم پلار د زړه ټوټه وه، که نه؟ زړه او هوس یې درلود، که نه؟ دا هر څه ولې وشول؟ دې باید پوه شي، چې دا امت او تاریخ یې دغه ډول ساتل شوی! د دغسې د لمبو منځ کې، د نړۍ د کینه‌ګرو د یرغلونو تاو کې او د ژوند د سختو کړلېچونو پېچ وخم کې د امت رجالو دغسې مېړانې کړې. اوس دې طالب د دې حدیث په هنداره کې ځان وګوري،چې : يُؤْتَى بِدِمَاءِ الشُّهَدَاءِ وَ مِدَادِ الْعُلَمَاءِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَا يُفَضَّلُ أَحَدُهُمَا عَلَى الآخَرِ. دی څه ډول کولی شي، چې د خپل قلم سیاهي د شهید له وینې سره برابره کړي؟؟ ستره ننګونه ده!

د پوښتنې د دوهم جزء په اړه باید ووایم، چې د علم له زده‌کړې سخت کار د علم توظیف دی. په ټولنه کې د علم حیثیت ساتل او د خلکو علمي اړتیا پوره کول، د ده توظیف پورې تړاو لري. ده سره که د یو عالم په توګه د موثر کردار اداء کولو فکر وي، د دې وخت له ټولو مهارتونو به ګټه اخلي. ځینې مهارتونه خو لا د یو اشد ضرورت په بڼه مطرح دي. عربي د علم ژبه ده او زموږ د علمي جمود یوه وجه د عربیت نه شتون دی. د امام شافعي رحمه الله په مذهب د عربۍ زده کړه واجب ده، که موږ یې د هغه رحمه الله پر مذهب پر ځان واجب ونه ګڼو، د شته جمود د ماتولو لومړنی شرط یې باید وګڼو، چې بیا هم د «ما لا یتم الواجب الا به فهو واجب» قاعدې پر بنسټ واجبیږي. انګریزي د نړۍ ژبه ده. موږ ته مجاهدینو په خپلو وینو او هډونو د خپل نړۍوال رسالت ستېژ راګټلی، پر دغه ستېژ له نړۍ سره مخامخ یو، د خپل رسالت د ښې تاثیرګذارۍ لپاره د انګریزۍ له زده‌کړې استفاده په کار ده. کمپیوټر بیا د علمي فعالیتونو د رالنډولو ښه فرصت پیدا کړی. په لږ وخت کې د تېر مهال د ورځو ورځو کار کېدی شي. ښه علمي ځغاسته پرې ممکنه ده، چې باید د هر طالب العلم د زده‌کړو ګاڼه وي.

**پوښتنه**: خیرخواه صاحب اوس به دې لږ په سیاست کې هم وګړوو، د هېواد روان جهادي او سیاسي بهیر څنګه ارزوئ؟ له امریکایانو سره د اسلامي امارت د دوحې تړون څومره بریمن بولئ؟ او په یاد تړون کې اسلامي امارت تر کومه بریده وکولی شول چې دیني او افغاني ارزښتونه خوندي کړي؟

**ځواب**: جهادي بهیر ډېر سخت تېل شوي پړاوونه ووهل. د یو چا خپل انتخاب او د چا لخوا تېل شوي وضعیت انتهایي ستر توپیر لري. له ۲۰۰۱ څخه تر ۲۰۰۶ پورې مجاهدینو د مرګ و ژوند کشمکش کې امتحان ورکړ. وجود ته یې څوک نه قانع کېدل. دوه انتخابه یې لرل؛ ودې مري یا دې زندان ته لاړ شي او هېڅ حق دې ونه لري!!



له ۲۰۰۶ وروسته یې وجود ته که څوک قانع کېدل یا نه، دوی د مرګ له کومې راووتل، وجود یې ثابت شو. هره تړه، غر او ګټ، هره څېړۍ، لمنځه او ښښتر کمین‌ګاه او دمه ځای شو. تر ۲۰۱۴ د جهادي تاثیر ګذارۍ ښه فعالیت وشو. د هرې پېښې او موضوع په اړه رسمي دریځ څرګند شو. خپل هر دریځ ثابت وساتل شو. نړۍ ته هم کرار کرار غږ ورسېد. تر دې دمه د مجاهدینو غږ خپ وساتل شو، چې له دې وروسته یې چا د خپ کولو توان ونه درلود. له ۲۰۱۴ وروسته کرار کرار د سیاسي وجود او بالاخره دا دی، د سیاسي

تـاثير مرحلـه راورسـېده. ډېـر ښـه تـدريجي تعامـل وشـو، د موضوعاتو په اړه د دريځونو انعکاس هم په ډېر تعادل وشو، دا دی، هره وړه او غټه، دننۍ او بهرنۍ موضوع کې د اسلامي امارت دريځ، خبره او نظر د يو ډېر مطرح لوري په توګه وځلېده. په سياسي ميدان کې نسبتاً فعاله ډيپلوماسي وکارېده، چې په کور دننه او بهر لا فعاليت او توسعې ته اړتيا لري. روانه مرحله ډېره مثبته او پر ښه سمت روانه بريښي، خو په کار ده، چې سياسي هلې ځلې لا تېزې، پراخې او خورې شي او شته فرصتونه ضايع نه شي!

د دوحې د تړون په اړه بې له کابل اداري او فيسبوکي مزدورانو يې هېڅوک منفي نظر نه لري. د دوحې تړون تر ټولو ستره ګټه او بريا دا ده، چې د کور دننه مسايلو په اړه د بهرنيو مداخله قطع شوه. د بهرنيانو د وتلو په اړه خامخا يو حوصلې ته اړتيا وه، چې تر دې ۱۴ مياشتو کمه حوصله شايد ممکنه هم نه وه، خو دا چې بهرنيان به په هېڅ ډول زموږ چارو کې مداخله نه شي کولی، دا د شلو کلونو د ټولو قربانيو هدف و او لله الحمد د ازادۍ په لومړي تړون کې دې هدف ځای ونيو.

له دې پورته د نړۍ ستر کبرجن زبرځواک خپل مېز تـه راکش کول، د دې امت د مجيد تاريخ يوه ډېره ښه کړۍ شوه. په ډېر ښه جرئت، متانت، ژبه او «سيالی» ورسره مذاکره پر مخ لاړه. اسلامي امارت د يو نړۍوال اصيل سيال په توګه ډېر ښه سياسي تعامل وکړ. که تعبير مې سم وي، وبه وايم، ډېر ښه «بلد» سياست يې وکړ. دا چې اسلامي امارت په تړون کې کابل اداره د حکومت په نوم نه پېژني، دا هم د ستر ملي ناموس مسئله ده، يوازې د دښمنۍ خبره هم نه ده. يوازې دا هم نه ده، چې ګوندې اسلامي امارت کابل اداره د ځان سياله نه ګڼي، شايد دا هم وي، مګر په تېرو شلو کلونو کې داسې ملي تخطۍ شوې، چې همدا دريځ يې چاره کولی شي. په تړون کې د هېواد پر راتلونکي ستر نظر ساتل شوی، د راتلونکي لپاره د زمينه سازيو ډېره ښه لار پرېښوول شوې. دا چې اوس کابل اداره او ټيم يې د دوحې تړون د اساس په توګه نه مني، لامل يې همدا دی، چې د راتلونکي نظام لپاره په کې يوازې يوه لار تېره شوې، چې اسلامي هغه دی!

**پوښتنه**: کابل اداري اوس دې خبرې ته ډېر کار ويلی، منډې تړړې وهي، د مصر- د ازهر او نورو عربي هېوادونو د مفتيانو دروازې ور ډبوي چې هغوی ورته ووايي د کابل د اوسني رژيم په مقابل کې جنګ ناروا ده؛ ستاسې له نظره به د دغو يو لړ مفتيانو يو جانبه قضاوتونه کابل رژيم ته څومره مثمر اومفيد تمام شي؟

**ځواب**: د اسلامي امارت د مجاهدينو په اړه خو د دې هلو ځلو هېڅ تاثير نه شته. مجاهدين د هغه چا فتوی نه مني، چې هغوی ان د بيت المقدس ننګه نه شي کولی!! د مجاهدينو سر خلاص دی، چې د جهاد په اړه به مجاهد ملا فتوی ورکوي او معتبره به وي او مجاهد ملا يقينا داسې فتوی نه ورکوي، چې د جهاد اهداف وننګوي. البته پر عام ذهنيت د دې هلو ځه تاثير کېدلی شو، مګر بهرنيانو سره د کابل اداري شامله او بيرغي ولاء د دې لامل شوه، چې عام ذهنيت هم متردد نه شي. تر دې پورته د مذاکراتو په اړه د کابل اداري طفلانه حرکات د دې باعث شو، چې د دوی هېڅ حربه کار ورنه کړي. موخه مې دا ده؛ که پر عام ذهنيت د دې هلو ځلو څه تاثير هم وي، مګر دا چې کابل اداره يې ښه نه شي توظيفولی او د خپلو هلو ځلو پر خلاف يې اقدامات پر يو ډول سياسي وقاحت بناء دي، هغه نسبي تاثير يې هم منفي کيږي.

**پوښتنه**: خيرخواه صاحب د فيسبوک مبارزينو او فعالانو ته دې څه پيغام ده چې له دغه ستيج او مېزه د دين او ملي ارزښتونو د دفاع او داذهانو د تنوير په برخه کې څنګه استفاده وکړي او د وخت له ضياع او بربادۍ نه څنګه ځان وژغوري؟

**ځواب**: فيسبوک او په ټوله کې خواله رسنۍ د مثبت فعاليت ښه فرصتونه دي. موږ ګورو، ډېرو هغو خلکو، چې د ليکوالۍ په اړه يې د کمترۍ احساس کاوه، په ډېر طبعي ډول ليکل کوي. څه چې وغواړي ليکي يې. دې ميدان کې نه د يوې جملې پر خپرولو پابندي شته، نه د يوې کلمې او نه د

زرگونو کلماتو! همدې ځوانانو ته ښه فرصت ورکړ، چې په طبيعي ډول يې قلم روان شي. همدغه خبره قابل توجه ده، چې دوی بايد د نورو خلکو په څېر بې مهاره نه وي. دوی بايد اخلاقي التزامات ولري. د يو مسلمان ځوان په توګه که هر څه ليکي، د مسووليت احساس به کوي. پر ﴿مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ﴾ يې پوخ ايمان وي. توصيف، تحليل، نقد هر څه کولی شي،مګر هر څه يې بايد بريد ولري، ځکه دی پوهېږي، چې د الله تعالی مخ ته هېڅوک له مسووليته نه شي خلاصېدی!

د وخت له ضياع څخه دې په محدود استعمال ځان خلاص کړي. ځان ژغورنه او پرهېز دې پر ځان لازم کړي او کوښښ دې وکړي، چې تر فيسبوک خلاصولو مخکې يې بايد داسې څه تيار کړي وي، چې نشر يې کړي. که بې کاره بې کاره يې فيسبوک ته لاس اچاوه، نو پر ستر اعتياد به واوړي.

**پوښتنه**: او محترم خيرخواه صاحب د څرک مجلې په دا اوږد نشراتي بهير خو هم يو څه ووايه چې مزل او مبارزه يې څومره منلې او سودمنه وه او د مزيدې بريا او ځلا لپاره دې توصيې او مشورې څه دي؟

**ځواب**: څرک مجلې داسې مهال کار پيل کړ، چې ډارنو خلکو خو ساه هم نه اخيسته. د جهادي اظهار د جمود ماتولو يو غازي کردار د څرک مجلې دی. زما ياد شي، چې ځينو خلکو به مجله ولوسته بيا به يې د شپې پټه د مسجد المارۍ ته راوړې وه، چې کور کې يې څوک ورسره ونه ګوري. په څرک مجله کې که څه کمی وي، د ضيقو شرايطو او د امکاناتو د نشت له امله به وي. که نه په داسې شرايطو او دومره امکاناتو دا ډول کار د ډېرې ستاينې وړ دی.

راتلونکي ته يې که پر ژبنې تصحيح، فکري اړخ، د محتوياتو پر ځانګړتيا او صحافتي جدت ډېر پام وشي، تاثير او ګټه به يې لا ډېره شي. مننه

* * *

# دپيرسفيد شاه همدرد دوفات له امله

## دفرهنګي چارو کميسون دخواشينی پيغام

په ژوري خواشينی سره مو خبر ترلاسه کړ چې دصحافت او ژورناليزم په ميدان کې پياوړی او سپين روبی شخصيت پيرسفيد شاه همدرد لدې فاني دنيا وکوچيد إِنَّا لِلّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعونَ

مرحوم پيرصاحب په داسې حال کې چې يوې روحاني اوديندار ه کورنۍ سره يې تعلق درلود شاوخوا ۷ لسيزي يې دصحافت او ژورناليزم په ميدان کې په خورا متانت اوهمت ستړياوي وګاللي، په نورو ګڼو ادبي او علمي بنستونو سربيره يې څلور لسيزي وړاندې دوحدت په نوم ورځپاڼه تاسيس کړه چې عمده برخه يې دافغان جهاد دپر مختياوو او پيښو ځلول او نشرول ول، دهمدغو هلو ځلو او خدمتونو له امله پيرصاحب او کورنۍ يې دافغانانو په منځ او په خاص په پاکستان کې دافغان مهاجرينو په زړونو کې زيات محبوبيت لاره اولري يې

دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسون دپيرصاحب وفات لويه او هراړخيزه ضائعه بولي ترسره کړو ديني خدمتونو ته يې درناوی کوي او فرهنګي هلې ځلې يې نه هيريدونکي بولي، کورنۍ او دوستانو ته يې جميل صبر او مرحوم پيرصاحب اخروي سعادت اوجنت الفردوس ارزو کوي .والسلام

مولوي ذبيح الله مجاهد

داسلامي امارت ويندوی او دفرهنګي چارو کميسون مسؤل

۲۰۲۰/ ۱۱ / ۲۷




## (د ترنم بلبلانو ته ډالۍ)

دانش ملنګ

وچه څانګه وي خو ستا په مینه ګل شي
ماتې ماتې کرښې خوند وکړي غزل شي

مراوې هيلې د شاعر زړه کې ژوندۍ شي
ستا نامه یې د ژوند په شونډو ښکل شي
د حسان ابن ثابت جاى نشن یې
زمزمه دې په دښمن باندې اجل شي

د مۍ خوار غوندې نشه شم خوب مې یوسي
ستا د مینې ترنم پرې مکمل شي
تا ساتلی دی سنګر د فرهنګ یاره
ذوالجلال دې ستا په هره ګړۍ مل شي

ګوره پام د بل هدف لپاره مه ځه
هسې نه سپېڅلی نوم دې پرې بدل شي
د خپل دین د سرلوړۍ ترانې وايه
چې مسير دې د حسان په زرين پل شي

حنجره دې په تول عمر خپه مشه
غږ دې خوږ لګي سم نقل د بلبل شي
ستا دانش ملنګ به تل درباندې وياړي
ستا د ناز خوب دې د حورو به څنګل شي

## دست ما خالی از عمل

محمد محمدي

بار الها رحمتی برجان بکن
مرگ مارا مرگ با ایمان بکن
ما گنهکار یم و تو بخشنده اے
باخبر از حال و قلب بنده اے
بی عبادت زندگانی شد به سر
زندگی کردیم اما بی ثمر
درعبادت ماخیانت کرده ایم
زندگی رابی دیانت کرده ایم
ما سپر کردیم عمری بی ثبات
تابع نفس و هوا و خواهشات
اینک از درگاه تو داریم امید
تا بگردانی تو مارا رو سفید
جان ما برنفس وشیطان شد اسیر
هرکسی جز ذات تو برما امیر
عمرما بیهوده گشت و بی اثر
گشته بودیم از عذابت بی خبر
روزوشب در خواب غفلت بوده ایم
غافل ازاحوال جنت بوده ایم
دست ما خالی از عمل
عمر رفت و سر رسید از ما اجل

## څلوريزه

**یوه اوښکه د حسرت یم د ارمان په لمن څاڅم**
**لکه پرخه تر سهاره د جانان په لمن څاڅم**

**د مظلوم د زړګي اه یم د یتیم د خولې فریاد یم**
**اوښکې اوښکې وینې وینې د جهان په لمن څاڅم**

امان الله نصرت

## غزل

چې تهٔ مې را په زړهٔ نهٔ شې نوښت غزل کې نهٔ وي
په ملا له زوره ماته شي، پايښت غزل کې نهٔ وي
نو څوک به ترې د ميني اوبهٔ څنګه نوش جان کړي؟
چې شړکنده د درد ظالم اوربښت غزل کې نهٔ وي
چېتې شي، ناقرار زړهٔ ته ارام ښښلی نهٔ شي
چې ستا د وربښمين ياد نازک بالښت غزل کې نهٔ وي
بې کيفه وي، بې سوره وي، او دوې ورځې يې ژوند وي
ياد شوی ستا د سترګو چې ارزښت غزل کې نهٔ وي
هغې سره دي مينه وي همدې لپاره پېغله
چې يو ټکی خامي او بل زړښت غزل کې نهٔ وي
د تورې صحراء شګې يې شي، تورې بې ثمره
چې ګل غوندې را شين د بېلتون کښت غزل کې نهٔ وي
نهٔ، دنګه شفاعته! ليونتوب در غاړي وتی
بېخي دي د پخوا په څېر جوړښت غزل کې نهٔ وي
شفاعت ريحان

## دل مبند بر مال دنیا

ع باعث

رسم دنیا درهمین است آنکه آمد رفتنی ست
بعد رفتن نام نیکت بر زبانها ماندنی ست
تا توانی خلق را از خود مرنجان با سخن
آنکه بالاتر نشیند، آخرش افتادنی ست
عمر و جانت گرچه عمر نوح هم باشد ولی
شیشه ی عمر گرانم عاقبت بشکستنی ست
تکیه بر ایمان خود کن هم ره شیطان مشو
ریسمان دست شیطان ظاهراً پوسیدنی ست
ثروتت بند است برشب شهرتت با یک تبی
عاقبت ثروت به دست وارثان بسپردنی ست
دل مبند برمال دنیا ، مال دنیا بی وفاست
خرقه ی زرهم بپوشی سیم و زر نابردنی ست
بشنو یک پند از دل دلخسته ی این روزگار
رسم دنیا درهمین است پند من بشنفتنی ست

"جواد نوری"

## به مناسبت شناخته شدن افغانستان

### به عنوان غمگین ترین کشور جهان

تا این غلامان باشد و این ارباب بی دین
غمستان خویش را غمگین تر میبینم

تا سیاست شرق و غرب باشد در سرزمین
مادران و خواهرانم را با چشم تر میبینم

تا که گرم باشد دکان این مزدوران و ظالمین
پدران ملتم را افسرده و افسرده تر میبینم

فراقت باشد برادر سخت بر دل سنگین
خود را در ایام جوانی پیر و پیرتر میبینم

گر فضا باشد در جامعه افکار چنین
کودکم را گمراه و گمراه تر میبینم

تا که باشد فحشا در رسانه در کمین
دخترانم را بی حجاب و بی عفت تر میبینم

گر نسایم طبق حکم حق پیشانی بر زمین
روزگار خویش سیاه و سیاه تر میبینم

تا نباشیم حکم حق را برحکم باطل گزین
جامعه خویش را فاسد و فاسدتر میبینم

## رباعی

گر جهل رها و به خرد وصل شویم.!
در بحر خرد حل و همه عقل شویم.!
از ترس و طمع تهی و فارغ گردیم.!
با علم و عمل رها ز هر جهل شویم.!

"بهرام زمانی"



# پګړۍ د مجاهد امتیازي نښه ده!

لیکنه :م .سلطان محمد ثاقب.

اسلام مسلمانانو ته چې د هر حکم د پلیکېدو په اړه امر کړی دی، ور سره سم یې د یو ډول لباس (کالو) یادونه هم کړې ده لکه : د اخترونو، جمعې لمونځونو، پنځه وخته لمونځونو، مسلمان په ورځنی ژوند کې، نارینه جامه، زنانه جامه، بلکې هر مسلمان چې اسلامي حکم پلي کوي؛ نو ور سره به یې د لباس یادونه شوې وي چې یو مسلمان د فلاني حکم پلي کولو کې باید کوم ډول لباس استعمال کړي.

ځکه خو اسلام هم د مطلق لباس له پاره دوه ډوله حدونه بیان کړي دي. یو ډول لباس داسې دی؛ چې هغه فرض دی،کوم باندې چې عورت پټولی شي او دوهم ډول مستحب لباس ده چې هغه اضافي ښکلا ده.

الله تعالی په قرآن کریم داسې وایي :يَا بَنِي آدَمَ قَدْ أَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُوَارِي سَوْآتِكُمْ وَرِيشًا ۖ . الآیَة، سورة اعراف آیت نمبر ۲٦.

ژباړه : ای د آدم اولادې! تاسو ته مو جامې درنازلې کړې، چې ستاسو شرم ځایونه پټوي او ښکلا هم ده. په اسلام کې جهاد هم یو ځانګړی حکم دی، اوس پوښتنه دا ده؛ چې د مجاهد لپاره امتیازي نښه څه شی ده؟

د مجاهد لپاره د غزا په میدان کې تر ټوله ستره او امتیازي نښه چې په قرآن کریم یې الله تعالی یادونه کړې ده، هغه پګړۍ(لونګی) ده، کوم چې په عربي ژبه کې ورته عمامه ویل کیږي.

الله تعالی په قرآن کریم کې فرمایي: بَلَىٰ إِن تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا وَيَأْتُوكُم مِّن فَوْرِهِمْ هَٰذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُم بِخَمْسَةِ آلَافٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُسَوِّمِينَ (۱۲۵).

ژباړه :هوکې، که صبر او تقوا وکړئ او هغوي دا اوس دربانديې راشي؛ نو رب به مو په پنځو زرو نښانمنو ملایکو مرسته وکړي.

د دې آیت په تفسیر کې علامه ابن کثیر رحمه الله د ابن عباس رضی الله تعالی عنهما څخه رانقل کړي دي : د بدر په ورځ د مجاهدینو د مرستې لپاره چې کومې مجاهدې ملائکې راغلې وې، دې هغوي په سر تورې پګړۍ وې، سپینې او زیړې پګړۍ هم رانقل شوې دي.

انس بن مالك رضی الله عنه روایت چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به فرمایل: پګړۍ د عربو تاجونه دي، کله هم چې عربو پګړۍ ښکته کړې؛ نو هغوي به خپل عزتونه کوز کړي.

العمائم تیجان العرب فإذا وضعوا العمائم وضعوا عزهم .مسند الفردوس.

په خپله محبوب صلی الله علیه وسلم مې هم پګړۍ تړلې ده، ډېرې مهال به يې توره پګړۍ په سر کوله، پګړۍ به يې په خولۍ برسېره تړله، خولۍ به يې ساده اوتیته وه، شمله به يې کله په ښي اوږه او کله هم د ولیو په منځ کې پرته وه، او کله به يې تر غاړه تاووله. د فتح مکې په ورځ محبوب توره پګړۍ په سر تړلې وه.

هغه د عالم بیان کې دا کیسه ډېره زیاته مشهوره ده، چې د قندهار په ولایت کې مجاهدينو په لاره کې يو لرګی درولی وو او توره پګړۍ يې ورته تړلې وه، کله چې د امریکایانو قطار راغی او دا پګړۍ يې ولیده؛ نو وار سره يې پرې پیر شروع کړو، تقریبا نیم ساعت يې ور سره جګړه وکړه، په پای کې ورته معلومات وشو چې دا طالب جان مجاهد نه دی بلکې هځې لرګي ته پګړۍ ور تړل شوې ده.

دا رعب د چا وو؟ دا د تورې پګړۍ دبدبه، ولوله او رعب وو. د هند په موزېم کې اوس هم د احمد شاه ابدالي هغه تاریخي پګړۍ ایښې ده او هندوان ورته د عزت په سترګه ګوري.

له پورته لیکنې څخه معلومه شوه چې پګړۍ د مجاهد لپاره وقار، عزت، ولوله، دبدبه، رعب او ویاړ ده. پګړۍ د مجاهد لپاره سپیڅلتیا او ښکلا ده، پګړۍ د مجاهد له پاره د نبوي وراثت زیری ده؛ بلکې پګړۍ د مجاهد لپاره اسلامي او جهادي نښه ده .

شاعر درمل صیب څومره ښه وایي:

د درمل د کلي ستړیه طالب جانه!
دا کړه وړه پګړۍ دې مه شه رنګه

# د افغانانو وینه څومره بې ارزښته شوه !.؟

ژباړه؛ نجیب الله "عادل

یوه امریکایي عسکر (کیلوِن ګِبز) په عدالت کې ومنله، چې د شرابو په نشه کې يې فقط د تفریح او یادګارۍ لپاره افغانان قتل کول، ۲٦ کلن کیلوِن ګِبز په افغانستان کې د پنځه کسیزه ډلې (ففتهٔ استرایکر برګیډ) په نوم د يو قاتل ګروپ مشر وو، کیلوِن ګِبز عدالت ته وویل: چې افغانستان کې يې د چاپو پر مهال ډېر بې ګناه افغانان فقط د تصویرانو اخیستلو او تفریح لپاره قتل کړل.

تحقیقاتي ډلې د قاتل کیلوِن ګِبز له شخصي موبایل څخه داسې ویډیوګانې او ساتل شوي تصویرونه هم عدالت ته وړاندې کړل؛ چې په هغو کې د وژل شویو افغان وګړو د لاسونو پرې شوې ګوتې ایستل شوي، غاښونه او نور بدني اعضاء هم شامل دي. په یوه ویډیو کې کیلوِن ګِبز د وژل شوي قندهاری ماشوم(ګل محی الدین) څخه د لاس ګوته پرې کوي او خپل ملګري(سارجنټ هولمز) ته يې په خندا ډالۍ کوي، په بله ویډیو کې کیلون ګبز او ملګری يې په يوه هڅکه غونډۍ باندې دوه افغانان د تفریح لپاره په نښه کوي او وژني يې.

په يو تصویر کې د يوې افغانۍ میرمنې غوڅ شوی سر په لاس کې نیولی او په خندا سره په ګوتو باندې د V نښان جوړوي، "کیلون ګبز" دا هم ومنله چې له وژلو وروسته به يې د افغان وګړو تر څنګ وسله هم کېښودله، ددې لپاره چې وژل شوی بې ګناه افغانان ترهرګر ثابت کړي.

د نوموړي وحشي صفته ځناور انسان د مرکې ځینې برخې په انګلیسي ژبه په لاندې لینک کې لوستلی شئ.

https://abcnews.go.com/amp/Blotter/leader-thrill-kill-soldiers-found-guilty/story?id=١٤٩٢٤٨٦٣

پای

# اسلامي نظام

## يعنې څه؟

■ استاد لطيف الله قمري

په دې وروستيو کې د هېواد په سطحه د اسلامي نظام اصطلاح ډېره استعمالېږي، شنوونکي او عُقدوي نقادان د اسلامي نظام له نوم سره يوځای د سنگسار او د لاسونو غوڅول غوټه کوي. ځينې خو آن د اسلامي نظام له اصطلاح سره دومره حساسيت ښيي، چې فکر کوي د اسلامي نظام او د دوی ترمنځ د پلار او نيکه دښمني ده.

اسلامي نظام يعنې د ټولو بشري اساسي حقوقو خونديتوب او بشر ته د انسانيت تر ټولو د عالي مقام اعاده، د بشر اساسي حقوق ، د ژوند حق، د مال ساتنې حق، د عقل ساتنې حق، د عزت او ابرو ساتنې حق ؛ چې نړيواله ټولنه يې په ساتنه کې پاتې راغلې او لا ددې حقوقو د نقض مرتکبه شوې هم ده.

د اسلامي نظام اساسي دنده د دغو حقوقو ساتنه ده . يوازينی نظام چې بشر ته به د انسانيت عالي مقام اعاده کوي، هغه اسلامي نظام دی.

په اسلامي نظام کې وړاندې تر دې چې پر سنگسار غور وشي؛ د عزت او ابرو د ساتنې پر حق فکر کېږي، د نکاح پر اسانی غور کېږي د بشر د جنسي غوښتنو د اشباع پر سالمو، پرامنه او گټورو لارو فکر کېږي او د بشر- او د هغه د فطري غوښتنې ترمنځ ولاړې ستونزې له منځه وړل کېږي. کله چې ټولې ستونزې حل شي او بشر خپلو مشروع غوښتنو ته لاس رسی پيدا کړي او له هغې وروسته هم د جرمي فطرت لروونکی بشر جرم کوي، نو بيا په اسلام کې ورته د مجازاتو فکر کېږي.

اسلامي نظام يعنې د څو پرديو تاجرانو له لاسونو څخه د خپل ملت ازادول، د څو پر ځان مئينو او ستمگرو استبداد ته د پای ټکی کېښول، د ملت ترمنځ د بې عدالتيو او دولت او ملت ترمنځ د ايجاد شوې فضاء پای ته رسول، د طبقاتي نظام او نوي جاهليت پر وړاندې بغاوت.

اسلامي نظام بشري اړتيا ده، د بشر- ستونزې د ټولو بشري نظامونو پر ايجاد لا زياتې شوې، له کمونېزم نېولې بيا تر ديموکراسی، جمهوريت او استبداد ټول سستمونه چې انسانانو جوړ کړي وو؛ د جوړوونکو د شخصي- گټو او د ملتونو پر زيان تمام شوي.

بشريت د بشري ستونزو د پای په لټه کې دی او پدې لټه سرګردانه او لالهانده ګرځي. که رښتیا هم نړی بشر ـ ته د هغه اساسي حقوق ورکول غواړي، نو د اسلامي نظام پر وړاندې دې د تسلیمۍ ګونډې ووهي او د اسلام تر چتر لاندې دې د بشر ـ د ټولو ستونزو حل ولټوي.

اسلامي نظام له عقیدې نیولې بیا تر عباداتو، معاملاتو او اخلاقیاتو د بشر ـ ټول ژوند یو په یو تر بحث لاندې نیسي ـ او د بشري ژوند سیاسي، اقتصادي، ټولنیز او کورنی نظام اصلاح کوي.

اسلامي نظام د کومې ډلې او ګوند شعار ندی، اسلامي نظام د کومې ډلې او ګوند میراث ندی، اسلامي نظام د هیڅ چا ملکیت ندی؛ د اسلامي نظام پر وړاندې دښمني د کوم خاص جهت پر وړاندې دښمني نده؛ د اسلامي نظام پر وړاندې دښمني د بشریت پر وړاندې دښمني ده، بشر کامل عدالت له اسلامي نظام پرته لاس ته نشي راوړلی.

پای




# تاریخي اشتباه!

نصرت حقپال

د قومي مشرانو او جهادي رهبرانو یوه ستره تاریخي اشتباه دا وه، چې په خپل لاس یې قپل قدرت امریکا او بیا د امریکا له ملاتړه برخمنو سېکولرانو او له غربه راغلو ایجنټانو ته وسپاره.

په لومړیو کې امریکا قومي مشرانو او جهادي رهبرانو ته څه نا څه ناز ورکاوه او دوي ته به یې مالي او مادي امکانات ورکول. دوي هم په دغو موقتي او هدفداره امکاناتو خوشاله ول او کوښښ یې کاوه؛ چې د امریکا پروژه (سیکولرو او د غرب په ثقافت روزل شوو ځوانانو او ځیرو ته له مجاهدینو او قومي مشرانو څخه د واک انتقال) بریالی کړي.

اوس یې داده په سر اوخوړه او هره ورځ د همدغو سېکولرو او غرب ځپلو ځوانانو او ځېرو له خوا څخه توهین او تحقیر کیږي.

اوس لا دا د پېټي سر دی، پټی وروسته خوره ور دی. دا هغه ګناه ده چې تاسو کړې او قیمت یې هم خپله پرې کوئ. موږ خو تاسو ته په کراتو د دې وضعیت خبرداری درکړی وو، خو تاسو زموږ خبره بابیزه وګڼل او موږ مو خپل و نه ګڼلو.

اوس هم ناوخته نه ده. دا پاتې مجاهدین او قومي مشران او د دوي زامن دې پند او عبرت واخلي، کنه نو داسې ورځ به راشي چې په پښو کې مو زنځیر پروت او د امریکا، برتانیا او غربي سفیران به درته ګوري او تاسو به یې پل چرخي ته روان کړي وئ!



# وزارت داخله‌ی در نقش کمپنی امنیتی!

ع- اکمل

انتفاعی د جانبه» فراهم می‌کند. این موضوع را وزارت داخله پس از آن روی دست گرفته که شماری از مراکز تعلیمی و تحصیلی هدف حملات مرگبار استخباراتی قرار گرفتند و طی آن ده‌ها دانشجو کشته و زخمی شدند.

یکی از روش‌های دولت‌های فاسد وغلام برای فریب مردم این است که اولاً یک معضل و مشکل را ایجاد می‌کنند و سپس برای رفع آن معضل راه حل ارائه می‌دارند تا در آن منفعت خودشان تضمین باشد. کار وزارت داخله‌ی کابل نیز شبیه همین قضیه است.

حکومت کابل برای این‌که در پروسه‌ی صلح امتیازات بیشتر به دست بیاورند، بنام‌های مختلف بالای بعضی مراکز تعلیمی و تحصیلی حمله نمودند و حالا برای جلوگیری از حملات بیشتر معامله‌ی انتفاعی با مراکز آموزشی انجام می‌دهند. به این معنا که وزارت داخله می‌خواهد مانند کمپنی‌های امنیتی عمل نموده و برای حفظ جان مردم، تجارت کند.

در حالی‌که امنیت یکی از اساسی‌ترین حقوق مردم بالای یک دولت می‌باشد. دولت نیز مکلفیت مهم اش این است تا از جان و مال مردم و اماکن عامه و مراکز تعلیمی و تحصیلی حفاظت کند. وقتی دولت نمی‌تواند از اتباعش حفاظت کند، دولت نیست، خود جلاد تجارت پیشه است.

## جنت وړیا او دوزخ په پیسو؟

یو سړی زوی ته وویل: زویه پوهېږی جنت وړیا دی خو دوزخ باید په پیسو واخلی!

زوي وپوښتل: څنګه پلار جانه ؟!؟

پلار ځواب ورکړ: جهنم په پیسو دی! ځکه چې:

جواري/قمار وهلو کې پیسه مصرفیږي. شراب او شباب په پیسو رانیول کیږي. چرس/سګرټ وغیره په پیسو دي. د ټنګ ټکور کنسرټ په پیسو دی. د ګناهونه لپاره سفر په پیسو دی. خو جنت وړیا دی زویه ځکه چې:

لمونځ کولو باندې پیسه نه مصرفېږی. روژه باندې مصرف نه کېږي. خلکو سره په مسکا لیدل ، سلام کول له لارې زیانمن‌ونکی شی لیري کول پیسو پورې تړلی ندي.

استغفار کول له ګناه څخه ځان ژغورل، له خدایه څخه ویره کول ټول وړیا کېږي.

نور دې پریکړه خپل لاس کې ده د پیسو په مصرف جهنم ته تګ غواړی یا په وړیا ډول جنت ته . ریښتیا هم ځینې مشران په ټول تللې خبرې کوي.

#ژباړه_ادریس م



"دهیواد پراخې سیمې د **شریعت غږ راډیو** تر نشراتي پوښښ لاندې راغلې دي"

# د سمعي او بصري څانګې له مسؤل سره مرکه

مرکه کوونکی: أبو عابد

**درنو لوستونکو!**

**تاسو به خبر شوي یاست چې په دې وروستیو کې د هیواد به بیلابیلو ولایاتو کې د اسلامي امارت د فرهنګي کمیسیون لخوا د شریعت غږ راډیو خپرونې د پخوا په نسبت په نوي کم او کیف سره پیل شوې دي او د هیواد شاوخوا لس ولایات د راډیویي خپرونو تر پوښښ لاندې راغلي دي.**

**د هیواد د مرکزي، جنوب ختیځو، جنوبي او جنوب لویدیځو سیمو خلک یو ځل بیا د شریعت غږ راډیو په جهادي خپرونو او حماسي ترانو خپل ذوقونه خړوبوي.دا چې د راډیویي خپرونو له پراختیا سره د هیوادوالو او مجاهدینو یوه پخوانۍ هیله پوره شوې او په عامه روحیاتو یې هم ښه اغیز کړی دی په همدې مناسبت مو د اسلامي امارت د فرهنګي کمیسیون په چوکاټ کې د سمعي او بصري څانګې له مسؤل مولوي احمد الله متقي صاحب سره مرکه کړې چې ستاسو پاملرنه ورته راګرځوو.**

**پوښتنه**

محترم مولوي صاحب له هر څه وړاندې درته هرکلی وایو. سمعي او بصري څانګه خو په بیلابیلو برخو کې مختلف فعالیتونه ترسره کوي. خو له ټولو مهمه برخه یې د راډیویي نشراتو برخه ده. که لوړی په همدې هکله زموږ لوستونکو ته معلومات ورکړئ. مهرباني به مو وي.

**ځواب**

الحمد لله و کفی و الصلوة و السلام علی عباده الذین اصطفی. و بعد:

له هر څه وړاندې تاسو او لوستونکو ته سلام او احترامات وړاندې کوم. هیله ده چې له کامل صحت او عافیت څخه به برخمن یاست.

باید ووایم چې راډیو له مهمو رسنیو ګڼل کیږي خصوصا په افغانستان کې ښایي تر ټولو مؤثره او توجه جلبوونکې رسنیزه وسیله راډیو وي. کله چې اشغالګرو په افغانستان برید وکړ، نو هغوی له اولې ورځې د راډیوګانو څخه پراخه تبلیغاتي استفاده پیل کړه. له نړیوالو راډیوګانو علاوه یې په پایتخت کابل، ولایاتو او حتی ولسوالیو کې بې شمیره راډیویي سټیشنونه فعال کړل. امریکایانو به په خلکو مفتي راډیوګانې ویشلې تر څو هر څوک وکولای شي د دوی تبلیغاتي خپرونې واوري. امریکایان پوهیدل چې په جګړه کې تر ټولو مهم د مقابل اړخ د ذهنیت اشغال دی. او د همدې لپاره یې په پراخه کچه له راډیوګانو استفاده پیل کړه.

د اسلامي امارت د فرهنګي کمیسیون لخوا هم مسلسل هڅه روانه وه چې د دښمن د راډیويي تبلیغاتو په مقابل کې راډیويي نشرات ولري. خو په دې برخه کې له ډیرو موانعو سره مخامخ و. یو دا چې د قوي دستګاوو پیدا کیدل سخت وو په داسې حال چې اسلامي امارت تر سختو نړیوالو بندیزونو او تهدیدونو لاندې و. بل دا چې دښمن هم ډیر متوجه و او د راډیويي فعالیت په وړاندې یې ډیر حساسیت درلود.

خو مجاهدین نه مایوسه کیدل او په ټول توان یې هڅه کوله چې د نورو برخو غونډې د راډیويي نشراتو په برخه کې هم د دښمن بالمثل مقابله وکړي. د جهاد په ۱۹ کلنه مرحله کې په بیلابیلو سیمو کې د راډیويي نشراتو د پیل تجربې ترسره شوې. خو د تخنیکي مشکلاتو، د وسائلو کمبود او امنیتي ستونزو له امله دغه فعالیتونه ډیر ژر له خنډ سره مخامخ شول. تر دې چې په دې وروستیو څو کلونو کې د اسلامي امارت د فرهنګي کمیسیون لخوا په منظم ډول د راډیوګانو فعالیت پیل شو. کرار کرار یې وده وکړه او اوس لله الحمد موږ د هیواد په بیلابیلو سیمو کې راډیويي نشرات لرو. همدا اوس له کابل ونیسه بیا د نیمرزو تر حدودو پورې سیمه د راډیويي پوښښ لاندې راغلې ده. د میدان وردګ، لوګر، پکتیا، پکتیکا، غزني، زابل، کندهار، روزګان او هلمند په ولایاتو کې د شریعت غږ راډیو خپروني اوریدل کیږي.

## پوښتنه

راتلونکی پلان مو څه دی آیا د هیواد نورې سیمې به د راډیويي نشراتو تر پوښښ لاندې راشي؟

## ځواب

دا چې په هیواد کې وضعیت په چټکۍ سره بدلیدونکی دی، موږ هم هڅه کوو چې له نوي وضعیت سره سم د هیواد په نورو سیمو کې هم راډیوګانې فعالې کړو. امید شته چې په نږدې راتلونکې کې به په شمالي ولایاتو او شمال ختیځه حوزه کې هم راډیويي نشرات پیل شي. له دې وړاندې موږ په ننګرهار او کونړ کې هم نشرات درلودل چې د بیلابیلو ستونزو له امله اوس هغه نشرات دریدلي دي. هڅه کوو چې په دې ختیځو ولایاتو کې هم یو ځل بیا د شریعت غږ راډیو خپروني پیل شي.

## پوښتنه

که یو څه د نشراتو په اړه معلومات راکړئ.

## ځواب

د شریعت غږ راډیو له شپو څخه سهار او مابنام څو ساعته مختلفې خبري، تحلیلي، دیني او بوختوونکې خپروني نشریږي. تازه خبرونه، مرکې، تحلیلونه، تبصرې او مقالې، دغه راز څو مختلفې خپروني لکه د ولس غږ خپرونه، د رنګینو شیبو او خوښو کړیو ترانو خپرونه، د اوریدونکو پیغامونه، له دې علاوه د علماء کرامو بیانات او د خوږ ژبو ترانه ویونکو ترانې هره ورځ خپریږي. د یادونې وړ ده چې دغه خپرونې د په پښتو او دري دواړو ژبو نشریږي. په راتلونکې کې به ان شاءالله خپرونې د شمیر او موضوعاتو په لحاظ نورې هم زیاتې او متنوعې شي.

**پوښتنه**

دښمن چې د بیان د آزادۍ شعار بدرګه کوي او د خپلو نولس کلنو لاسته راوړنو له جملې یې بولي. آیا د بیان د آزادۍ حق یوازې د ځان لپاره خوندي بولي او که دنورو لپاره یې هم په رسمیت پیژني. که دا راته وواياست چې د شریعت غږ راډیو په وړاندې د دښمن چلند څه دی؟

**ځواب**

باید ووایو چې د دښمن لخوا د بیان د آزادۍ خبره یوه دروغجنه ادعاء ده. دښمن یوازې د خپل ځان په نفع نشراتو ته اجازه ورکوي او د متقابل غږ لپاره هیڅ حوصله نه لري. لکه څنګه چې د اشغالګرو او د هغوی د ګوډاګیانو لخوا په جهادي مرحله کې د اسلامي امارت د بیلابیلو چاپي، صوتي او ویډیویي نشراتو مخنیوی شوی دی. د شریعت غږ راډیو د نشراتو د مخنیوي لپاره هم دښمن ټولې هڅې کړي دي.

په تېرو دوو کلونو کې د دښمن لخوا د شریعت غږ راډیو په دستګاوو شپږ ځله بمبار شوی دی. په ننګرهار کې دښمن زموږ د راډیو کارکوونکي په شهادت ورسول. خو لله الحمد د شریعت غږ راډیو د چلوونکو عزم دومره لوړ دی چې زموږ په یوه راډیو درې ځله دښمن بمبار وکړ خو بیا هم مجاهدینو له فعالیت لاس وانخیست او لا هم په پوره میړانه او اخلاص نشراتو ته دوام ورکوي.

کله چې دښمن له بمبارونو څخه مایوس شو نو اوس هڅه کوي چې د ډیرو قوي پرازیتونو په کارولو سره زموږ نشرات اخلال کړي. کله چې د شریعت غږ راډیوګانو خپرونې پیلیږي دښمن یا په هماغو څپو پرازیتونو راپریږدي او یا د خپلو محلي راډیوګانو فریکانس همدې څپو ته رااړوي. خو د دښمن دغه حربې هم ناکامې شوي دي او کومه د پام وړ نتیجه یې نه ده ورکړې.

نو بناء ویلای شو چې د دښمن لخوا د بیان د آزادۍ شعار هسې یوه دروغجنه ادعاء ده.

دښمن هیڅ مخالف غږ نه شي زغملی او په ټول توان سره هڅه کوي چې هغه غږ خاموشه کړي چې د دوی اصلي څیره او منفي کردار ولس ته ورپیژني.

**پوښتنه**

دا چې تاسو د فرهنګي کمیسیون د سمعي او بصري څانګې مسؤلیت لرئ که د همدې څانګې د نورو فعالیتونو په اړه معلومات راکړئ مهرباني به مو وي.

**ځواب**

د فرهنګي کمیسیون سمعي او بصري څانګه مختلفې برخې لري. یوه برخه یې د ویډیو ده. موږ په دې برخه کې درې رسمي سټوډیو ګانې لرو چې په الاماره، منبع الجهاد او الهجرت سره یادیږي. د دغو سټوډیوګانو له لارې په بیلابیلو موضوعاتو ویډیویي اصدارات نشریږي. د بېلګې په توګه یوازې د الاماره سټوډیو څخه تر اوسه ۱۱۳ اصدارات او ۶۵۶ لنډ کلیپونه یا ویډیویي راپورونه خپاره شوي دي. د دې نشراتو د عکاسۍ، تخنیکي کار او نشر مسؤلیت د سمعي او بصري څانګې دی. ویډیویي نشرات په بیلابیلو ژبو کیږي، له موږ سره د د روان جهاد د بیلابیل صحنو یو ډیر غني ارشیف هم موجود دی چې تاریخي اهمیت لري. ویډیوګانې په انټرنټ کې هم نشریږي او په الاماره ویب پاڼې کې ځانګړی سایټ لري.

دغه راز د سمعي او بصري څانګې لخوا وخت په بیلابیل صوتي مواد لکه تقریرونه، اصلاحي بیانات، ترانې او لیکنې د میموري ګانو له لارې نشریږي. د سمعي او بصري څانګې بله مهمه څانګه د راډیو څانګه ده چې هم په انټرنیټ کې روزمره خپرونې لري او هم د هیواد په مختلفو سیمو کې د راډیویي ایف ایم سټیشنونو له لارې نشرات کوي.

**پوښتنه**

په پای کې که کوم ځانګړی پیغام لرئ مهرباني وکړئ.

**ځواب**

پیغام مې دا دی چې موږ په تیرو نولسو کلونو کې تر ډیره حده یوازې د دښمن نظامي یرغل ته متوجه و، خو په تیرو ۱۹ کلونو کې دښمن د تبلیغاتو له لارې فکري جنګ هم جاري ساتلی. د نوي نسل د بیلارې کولو لپاره یې مختلفې راډیوګانې، ټیلویزونونه، چاپي نشرات او نورې رسنۍ په کار اچولې دي. بهرني سریالونه یې پښتو او فارسي ته ژباړلي تر څو د ځوان نسل اذهان وربانديې میکروبي کړي.

اوس چې له هیواد څخه کفري یرغلګر په تیښته دي د دوی نظامي شتون د تصفیې تر څنګ باید موږ د دوی د فکري یرغل آثار هم د ولس له اذهانو تصفیه کړو. په دې برخه کې ډیر پراخ کار ته ضرورت دی. علماء کرام، د قلم خاوندان، د پوهنتون استادان او ټولنې ټول هغه اقشار چې په اسلامي علم او فکر سمبال دي. باید د ځوان نسل د اذهانو تنویر خپله وظیفه وګڼي.

زموږ ولس ته ۱۹ کاله د اشغالګرو لخوا غلط تبلیغات شوي. باید دغه لوی نقصان جبیره شي. شریعت غږ راډیو په دې کې مؤثر رول اداء کولای شي. نو د دې راډیو د تقویې او د خپرونو د مؤثریت لپاره باید له موږ سره په هره برخه کې همکاري وکړي. د راډیو خپرونې خلکو ته معرفي کړي تر څو مو ټولنه له ګمراهۍ څخه خوندي شي.

# د غلو او غلامانو اخ و ډب!

**له څو ورځو راهیسې وینم چې سالېګی کله د پارلمان له وکیلانو سره دست و پاچه دی او کله هم د نورو زورورو سره چې دده خود سریانې نشي زغملای، نن ورسره عطا نور هم والوځول، داسې یې په یو بل بریدونه کړي چې پاک له یوې مخې اسناد دي، که نران یاست جمع کوئ یې، سالې عطانور متهم کړی چې د حیرتان بندر او ګمرک یې کې یې فساد او غلاوې کړي، او عطانور بیا د احمدیار له قیصو نیولې د امنیت ملي تر اوپراتیفي غلاوو یې ټولې ور یادې کړیدي، بیا یې پسې اخطار هم ورکړی چې ځویه ما سره ځان مه وهه کنه لمن دې پسر در اړوم.**

**دلته یوه خبره ډېره روښانه ده چې هېڅکله یو مفسد، خائن، غل، جاسوس او تالیځټی د بل غل، مفسد او خائن مخه نشي نیولی، ځکه هغه پخپله ککړ وي نو نور به څنګه پاک کړي، هغه پخپله دومره مرداری کړیوي چې د نورو مرداري ته په چپه هم نشي کتلای، ددوی پدې کشکمش کې زمونږ خیر دی، یو خو به دا ښخبره ځلمیان چې د سالېګي دې نمایشاتو ته د ډیر درناوي په سترګه ګوري باخبره شي چې دا سړی پخپله د کومې مرداری. نه راوتلی چې بیا به لا نور پاک کړي، او بل به ملت ددوی له هغو پټو خیانتونو او جنایتونو باخبره شي چې دې جنګسالارانو او د واک مئینانو څنګه لوبې ددې مظلوم ملت په سرنوشت کړېدي.**

**هغه لیونی دوستم هم په دې نړیوال متفکر هوښیار وخوت، اقلا دا یې درک کړه چې ناټو او امریکا په هغه قوت لدې جنګه پښه و ایسته او موټرسایکل سره یې روغه وکړه نو دا مونږ غلامان بیا په څه شي یو چې دومره پورته پورته وارېږو، د مفکر په کمیس خو دا بل د کورنۍ جګړې چریک او د ایس ریاست جاسوس ورننوتی چې نه بابا امریکا به خپل کار کوي دا جنګ زمونږ وه او مونږ به یې ګټو، په همدې فکر یې شاوخوا یو ملیون افغانان ووژل لا یې زړه یخ ندی کله وایي هندوستان دې ژوندی وي، کله بیا له بنګله ډېښي ملایانو فتواوې اخلي، او کله سفارتونو ته پیغامونه لېږي چې د وسلو او تجهیزاتو د ترمیم په اړه معلومات را ټول کړئ.**

**وخت یې دی چې د جګړې په اړه ځمکنیو حقایقو ته تسلیم شو، دا دربدري نوره ودروو او په سوله کې د افغانستان د پرمختګ لاپې شاپې ووهو، چارچوبونه ترسیم کړو، چارراهیانې جوړې کړو او د عمل ابتکار خپل کړو، کنه تاریخ زمونږ په مخکې پروت دی چې د جګړې سرنوشت له ارګه سړی کومې د چهاراهي په لور بیایي.**

**ل ـ خیر الله**

م مختار فاروقي

# د فساد په زمانه کې
# په سنتو باندې عمل!

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) خپل امت ته خبرداری ورکړی، چې په آخره زمانه کې به زیاتې فتنې پیدا شي. مونږ په داسې زمانه کې یو؛ چې ټوله دنیا فتنو نیولې ، هر سهار او هر ماښام نوې فتنه را پیدا کیږي.

خو د دغو ټولو فتنو نه د نجات یوازنی لاره په قرآن او سنتو باندې تمسک کول دي.

یا أیها الناس، إِنِّي قَدْ تَرَكْتُ فِيكُمْ مَا إِنِ اعْتَصَمْتُمْ بِهِ فَلَنْ تَضِلُّوا أَبَدًا كِتَابَ اللَّهِ ، وَسُنَّتِي.

وقال:فَعَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الْمَهْدِيِّينَ الرَّاشِدِينَ تَمَسَّكُوا بِهَا وَعَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ وَإِيَّاكُمْ وَمُحْدَثَاتِ الْأُمُورِ فَإِنَّ كُلَّ مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ وَكُلَّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ)

ژباړه : ای خلکو یقیناً ما په تاسي کې دوه شیان پریښي، که تاسې په هغو باندې ټینګ ووسئ هیڅکله به ګمراه نشئ ، د الله تعالی کتاب او زما سنت.

او فرمایي: پس تاسې زما په سنتو او د خلفاء راشدینو په سنتو چې هغوي هدایت شوي دي، ټینګ ووسئ او هغه په عقلي غاښونو ونیسئ او تاسې به په دین کې له نوي شیانو لرې اوسئ ځکه په دین هر نوی شی بدعت دی او هر بدعت ګمراهي ده.

او یقینا په داسې یوه زمانه کې چې ټوله دنیا فساد او فتنو په سر باندې اخستې وي، په سنتو باندې عمل اختیارول لوی اجر لري، ځکه چې په دغه زمانه کې په اسلام باندې پوره پابند خلک لږ وي او دوي په غربت کې ژوند تیروي.

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) فرمایلي:

بَدأ الإسلام غريبا وسيعود كما بدأ غريبا فَطُوبَى لِلغُرَبَاءِ

اسلام بې کسه او غریب شروع شوی ده او بیا به بې کسه او غریب شي؛ لکه څنګه چه شروع شوی و.

همدارنګه رسول الله (صلی الله علیه وسلم) فرمایي:

العِبَادَةُ في الهَرْجِ كهِجْرةٍ إليَّ

د فتنو په زمانه کې عبادت کول داسې ثواب لري لکه زما طرف ته هجرت کول.

یعني داسې دی لکه اولینو مهاجرینو چې د دین د ساتنې لپاره زما طرف ته (مدینې منورې ته ) هجرت کړی و.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:

إِنَّ مِنْ وَرَائِكُمْ أَيَّامَ الصَّبْرِ ، الصَّبْرُ فِيهِ مِثْلُ قَبْضٍ عَلَى الْجَمْرِ ، لِلْعَامِلِ فِيهِمْ مِثْلُ أَجْرِ خَمْسِينَ رَجُلًا يَعْمَلُونَ مِثْلَ عَمَلِهِ ، -وَزَادَنِي غَيْرُهُ – قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ أَجْرُ خَمْسِينَ مِنْهُمْ ؟ !قَالَ : أَجْرُ خَمْسِينَ مِنْكُمْ.

له تاسي نه وروسته د صبر ورځې دي ، چې په هغه وخت کې صبر کول داسې دي لکه پخپل موټي کې د اور سکروټه نيول ، په داسې زمانه کې د سنتو موافق عمل ثواب د پنځوسو کسانو د عمل ثواب لري صحابه کرامو وويل:

ای رسول الله د هغوي د پنځوسو کسانو ؟

ويې فرمايل : د تاسي د پنځوسو کسانو . يعنې پنځوس کسان د نن زمانې نه بلکه د صحابه کرامو د پنځوسو کسانو او څه وخت چې فتنې او بدعات او منکرات په خلکو کې زيات شي.

نو د دغه وخت په علماوو باندې لازمه ده چې د فتنو په وړاندې سکوت اختيار نکړي ، ځکه چې بيا به پايلې او نتيجه ډېره خطرناکه وي او مسئوليت يې د علماؤ په غاړه ده.

## د امام ابو يوسف رحمه الله عادلانه فيصلې

د امام ابو حنيفة رحمه الله مشهور شاګرد امام ابو يوسف رحمه الله د عباسي خليفه هارون الرشيد رحمه الله په وخت کې قاضي القضاة و، يوه ورځ د خليفه هارون الرشيد او يوه نصراني ترمنځ دعوه ورته راغله، امام ابو يوسف د دعوې له پلټنې وروسته د نصراني په حق کې فيصله وکړه.

وروسته چې کله امام ابو يوسف رحمه الله وفات کيدی، يوه داسې دعا يې وکړه: يا الله! ته پوهيږې، ما ته چې قضا سپارل شوې وه، دوو متخاصمو لوريو کې مې يوه ته هم آن په زړه کې هم تمايل نه دی لرلی، مګر د هارون الرشيد او نصراني دعوه کې مې (په زړه کې) دا برابري ونه کړه، فيصله مې هم د نصراني په حق کې وکړه! او له دې وروسته هغه په ژړا شو. اللهم إنك تعلمُ أني وَّليتُ هذا الأمر، فلم أمِل إلى أحدِ الخصمين حتى في القلب إلا في خصومة نصراني مع الرشيد لم أُسَوِّ بينهما وقضيتُ للنصراني على الرشيد.(القضاء في الإسلام ص ٢٥)

يعني د قضا په ټولو فيصلو کې يې زړه کې هم يوه لوري ته ميلان نه لاره، که څه هم چې حقه فيصله کې د زړه تمايل د ګناه خبره نه ده، يوازې د نصراني او هارون الرشيد دعوه کې يې د زړه تمايل د مسلمانانو د پاچا هارون الرشيد لور ته و، سره له دې چې فيصله يې د نصراني په حق کې کړې وه!

زموږ قاضيانو صاحبانو او ولسي مرکچيانو لپاره د دې ستر امام په دې وړه کيسه کې درانه او ژور پندونه پراته دي، که څوک د پند اخيستلو او عبرت ترلاسه کولو لپاره ويښ ضمير او بيدار زړه ولري.

## دو قوه ای دروغگو و کذاب

**نوشته ای: بلال باور**

**امرالله صالح وکلای ولسی جرگه را فاسد گفت و رئیس ولسی جرگه صالح و روند سبز را به جاسوسی متهم کرد. چند احتمال وجود دارد:**

**یا یکی از آنها راست میگوید، یا هر دوی شان و یا هیچکدام شان.**

**- اگر صالح راست میگوید پس ما پارلمان دروغگو و فاسد را داریم.**

**- اگر پارلمان راست میگوید پس ما یک قوه اجرایه دروغگو وجاسوس را داریم.**

**- اگر هردو دروغ میگویند پس ما با دو قوه ای دروغگو و کذاب مواجه ایم.**

**- اگر هردو راست میگویند پس: جمهوریت تان مبارک!**





# په اسلام کې

## د جهاد برابر هيڅ يو عمل نشته

مفتي محمد سعيد

د اسلام مقدس دين د نړۍ تر ټولو اديانو غوره او بهترين دين دی او الله تعالی په نورو اديانو په هر عصر کې غالب ګرځولی دی .

په دې مبارک دين کې يو شمېر احکام په مسلمانانو باندې فرض ګرځول شوي دي، چې په دې ټولو احکامو کې غوره عمل جهاد دی.

د جهاد په فضايلو باندې متقدمينو او متاخرينو عالمانو بې شميره لوی او واړه کتابونه ليکلي دي، لکه د ابن النحاس رحمه الله مشارع الاشواق، د عبدالله ابن مبارک رحمه الله کتاب الجهاد، الترغيب فی الجهاد او...... له دې نه علاوه په صحاح سته وکې هم د جهاد په فضائلو او مسائلو بېلابېل بابونه ليکل شوي دي؛ چې د هغو فضايلو له مشت نمونه د خروار ذکر کولو نه هم ځانته کتاب جوړېږي، دلته يو څو احاديث ترېنه را اخلم :

«۱» و عن ابي هريرة رضي الله عنه قال جاء رجل الی رسول الله صلی الله عليه وسلم فقال دلني علی عمل يعدل الجهاد ، قال لا أجده قال هل تستطيع اذا خرج المجاهدان تدخل مسجدک فتقوم ولا تفترو تصوم ولا تفطر؟ قال ومن يستطيع ذالک ؟ قال ابوهريرة ان فرس المجاهد ليستن فی طوله فيكتب له حسنات (رواه البخاري)

ژباړه : حضرت ابوهريرة رضي الله عنه فرمايلي دي؛ چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته يو سړی راغی او پوښتنه يې ترې وکړه، چې ماته داسې يو عمل وښايه چې د جهاد برابر ثواب ولري .

نو رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل : چې داسې عمل نشته چې د جهاد برابر وي، بيا يې ورته وويل ته داسې کولای شې، چې کله يو مجاهد د جهاد لپاره روان شي او ته جومات ته لاړشې او مسلسل داسې لمونځونه کوې چې هيڅ نقصان پکې نه وي او داسې مسلسل روژې ونيسې چې افطار پکې نه وي ؟ هغه وويل چې ددې طاقت څوک لري.

ابوهريرة رضی الله عنه فرمايي : چې د مجاهد آس که په پړي کې څو قدمو پورې ټوپونه ووهي، ددې هم د مجاهدلپاره ثواب ليکل کيږي.

«۲» د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی، چې د نبي کريم صلی الله عليه وسلم څخه چا پوښتنه وکړه چې د جهاد في سبيل الله برابر کوم عمل دی؟ نو نبي عليه السلام ورته وفرمايل؛ چې تاسو د هغه طاقت نشئ لرلای . هغو خلکو دوه درې ځلې بيا پوښتنه وکړه ، خو نبي عليه السلام به هر ځل په ځواب کې ورته ويل : چې تاسي د هغه طاقت نلرئ، بيا په درېيم ځل يې وويل : چې د مجاهد في سبيل الله مثال د هغه روژه دار، تهجدګذار او تلاوت کونکي په څېر دی ، چې له روژې او تهجد لمانځه نه کله هم نه ستړی کيږي؛ تردې چې مجاهد خپل کور ته بېرته راستون شي.

«۳» ابن عساکر رحمه الله په خپل سند سره له حضرت عثمان رضي الله عنه څخه یو روایت نقل کړی دی، چې هغه یوه ورځ په مدینه منوره کې په منبر خطبه ویله چې په هغې کې یې وفرمایل : ای د مدینې منورې خلکو! آیاتاسي په جهاد کې خپله برخه نه جوړوئ ؟ آیا تاسي خپل وروڼه اهل شام ، اهل عراق او اهل مصر نه ګورئ ؟ چې په جهاد کې لګیا دي. په الله قسم که له تاسي څخه یو سړی د الله په لاره (جهاد) کې یوه ورځ تېره کړي او جهاد وکړي، نو دا د هغه د کور د زرو ورځو له عبادت څخه بهتره ده، چې په هغه کې مسلسل روژې او لمونځونه وي.

وأخرج ابن ابی شیبة في مصنفه باسناد حسن عن مکحول مرسلا قال : جاء رجل الی النبي صلی الله علیه وسلم فقال : یا رسول الله ان الناس قد غزو او قد حبسني شيء فدلني علی عمل یلحقني بهم ، قال هل یستطیع قیام اللیل ؟ قال اتکلف ذلل قال : هل تستطیع صیام النهار ؟ قال : نعم ، قال : فان احیائک لیلک و صیامک نهارک کنومة أحدهم .

ژباړه : مصنف ابن ابي شیبة په حسن سند سره د مکحول رحمه الله څخه یو مرسل روایت نقل کړی دی ؛ مکحول رحمه الله فرمايي : چې یو سړی نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته راغی او ویې ویل : ای د الله جل جلاله رسوله !(صلی الله علیه وسلم ) خلکو په جهاد کې برخه واخیسته او زه د څه مجبورۍ له امله پاتې شوم . ماته داسې یو عمل وښایه چې ما د هغوی درجې ته ورسوي . نبي علیه السلام ورته وفرمایل : چې آیا ته ټوله شپه لمونځ کولای شې ؟ هغه وویل : کوښښ به کووم . بیا یې وفرمایل : آیا ته ټول عمر روژې نیولی شې ؟ هغه وویل : هو ، نیولی شم، نبي علیه السلام وفرمایل : چې ستا ټوله شپه تهجدکول او ټوله ورځ روژه نیول د یو مجاهد د خوب په څېر نه دي. دا روایت اګر که مرسل دی خو د اصول الحدیث علم کتابونو لیکلي دي، چې د ثقه راوي مرسل حدیث مقبول وي او د احنافو په نزد مرسل قابل د حجت دی.

په پای کې د ابن النحاس رحمه الله هغه قول را نقلوم چې په خپل کتاب مشارع الاشواق کې یې د دغو حدیثونو له راوړلو نه وروسته ذکر کړی دی.

قال المؤلف « اذا کان اکرمکم الله هذه درجة نائمهم فکیف لقائمهم ؟ و اذا کان هذا خطر شراکهم فکیف بخطیر افعالهم ؟ ان هذا لهو الفضل المبین لمثل هذا فلیشمر المشمرون و علی فواته فلیبک العاجزون المقصرون و علی ضیاع العمر في غیره فلیحزن المفرطون اللهم بصرنا باسباب النجاة ویسرها علینا و النظر بعین عنایتک ورحمتک فقد تصرم العمر في غیر طایل و انت علی کل شئ قدیر .

ژباړه : ای لوستونکو! الله تعالی دې تاسي ته عزت درکړي، دا درجه خو د هغو مجاهدینو ده چې خوب کونکي دي ، نو ددوي د تهجدګذارو به څه مقام وي او هرکله چې دا درجه د مجاهدینو د غافل سړي ده، نو ددوي د عمل کونکو به څرنګه مرتبه وي ؟ او هرکله چې دا د مجاهدینو د څپلۍ د تسمې شان دی نو بیا ددوي د لویو لویو عملونو به څه وایئ ؟ لاره د جهاد خو لویه کامیابي ده او واضحه فضیلت دی. د داسې عمل لپاره د تیارېدو خاوندانو تیار شئ او د منډې خاوند دې منډې کړي او ددې فضیلت فوت کېدو باندې دې عاجزه او کم همته سړی وژاړي او د جهاد څخه علاوه په نورو فضیلتونو کې په خپل خوږ عمر ضایع کولو باندې دې کوتاهي کونکي ښه غم وکړي. الله تعالی دې موږته د نجات لاره وښایي او تګ دې راته پرې اسانه وګرځوي او د خصوصي رحمتونو او خاص پېرزونې توجه دې راباندې وفرمايي .

یا الله !یقینا چې عمر مې په بې مقصده کارونو کې تېر شو حالانکه ته په هر شي باندې قادر یې.

۱ـــ لومړنی شخص چې د اعلاء کلمة الله لپاره په آس سپور شوی او جهاد یې کړی دی ، متوشلخ د ادریس علیه السلام ځوی وو . (سبائک الذهب فی معرفة قبائل العرب ص۱۰)

۲ـــ لومړنی شخص چې منجنیق یې جوړ کړ د کرد قبیلې هیزن نومې شخص وو. ویل کیږي چې ابراهیم علیه السلام په کوم منجنیق کې اور ته واچولی شو هغه هم ده جوړکړی وو، چې بیا د الله تعالی په قهر اخته شو او په ځمکه کې غرق شو.

ابن قتیبه رحمه الله وایي : لومړنی سړی چې منجنیق یې جوړ کړی دی جزیمة الابرش وو ، چې په جزیمة بن مالک الابرش هم شهرت لري، ابرش یې صفت دی د پلار نوم یې نه دی .

او علامه سیوطي رحمه الله فرمایلي دي : منجنیق په لومړي ځل بلقیس جوړکړ ، چې بیا جزیمه هم ورته اقدام وکړ او هغه هم جوړکړ(تاریخ ابن کثیرص۲۰۸ ج ۱)

۳ـــ اولنۍ غزوه چې مسلمانانو پکې منجنیق استعمال کړی دی ، د طایف غزوه وه ، چې د هجرت د اتم کال په شوال میاشت کې رامنځته شوې ده (نبی رحمت ص۳۵۴)

۴ـــ لومړنی سړی چې د جنگ لپاره یې خندق وکېنې ، د فارس بادشاه وو ، چې منوچهر نومېده ، او د موسی علیه السلام معاصر وو .

۵ ـــ لومړنی شخص چې ښارونه یې فتح کړل ، عبدالشمس بن یشجب نومېده ، چې ملقب په سبا وو (سویدي ص۱۷)

٦ـــ اولنی لښکر چې د ابوبکر صدیق رضی الله عنه په خلافت کې مسلح شو او د جنگ اراده یې وکړه د اسامه بن زید رضي الله عنه لښکر وو . (مزیلة الدرایة لمقدمة الهدایة ص۵)

۷ ـــ لومړنی غزا چې رسول الله صلی الله علیه وسلم کړې ده ، د ابوا ودان غزاوه چې د هجرت نه اتلس میاشتې وروسته رامنځته شوه، او په دې غزا کې بیرغ د حضرت حمزه رضي الله عنه په لاس کې وو (المواهب اللدنیه ص ۳۳۸ ج ۱)

۸ ـــ د احد په غزا کې چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د شهادت اواز په دروغو باندې خپور شو ، لومړنی کس چې رسول الله علیه السلام له هغه نه وروسته ولیده ، حضرت کعب بن مالک وو ، چې بیا یې صحابه کرامو ته هم دا اعلان وکړ . (طبراني ص۱۴۹)

۹ ـــ لومړنۍ کلا چې مسلمانانو محاصره کړه ؛ د خیبر د کلاگانو یوه کلا وه چې ناعم نومېده .

۱۰ ـــ لومړنۍ زنانه چې د اسلام د مبارک دین په لاره کې په شهادت ورسېده، حضرت سمیه بنت خباط د حضرت عمار بن یاسر مور بي بي وه او لومړنی سړی چې د اسلام په پاکه لاره کې په شهادت ورسېد ، حارث بن خالد نومېده (الاصابة ص۳۳۴ج ۴شماره ۵۸۵)

۱۱ ـــ د اسلام لومړنی لښکر په شپږم هجري کال د حضرت زید بن حارثه په مشرۍ د روم خاورې ته ورسید .

۱۲ ـــ د حضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه کې لومړنی غزا چې د سمندر له لارې وشوه د جزیره قبرس غزا وه ، چې د جنگ قیادت د حضرت امیر معاویه رضي الله عنه په لاس کې وو ، دا جنگ د معرکة ذات الصوری په نوم شهرت لري . (مسابقات وثقافات ص ۹۴،۹۵)

۱۳ ـــــ لومړنی مشرک چې د مسلمانانو لخوا ووژل شو ، عمرو بن الحضرمي وو ، چې حضرت عبدالله سهمي پخپل غشي وواژه .

۱۴ ـــــ لومړنی مسلمان چې د الله تعالی په لاره کې یې توره را واخیسته ، او هجاد یې وکړ، حضرت زبیربن عوام رضي الله عنه وو، چې د عشره مبشره له ډلې څخه دی . (اسماء الرجال مشکوة ص ۵۹۵وطبرانی ص۱۴۳)

۱۵ ـــــ په عربو کې لومړنی سړی چې په غشي- یې ویشتل کړي دي ، حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه وو . (مسابقات وثقافات ص ۸۰ـــ ۸۱)

۱٦ ـــــ د ایران د خاورې اولنی شخص چې په پیغمبر صلی الله علیه وسلم یې ایمان راوړ، حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه وو .

۱۷ ـــــ د یهودو لومړنۍ قبیله چې له مسلمانانو سره یې عهد شکني وکړه او په بدر او احد کې وجنګېدل ، د بنو قینقاع قبیله وه .

۱۸ ـــــ د انصارو لومړنی شهید حضرت حارثه بن سراقه انصاري وو، چې په بدر کې په شهادت ورسېد . (اسماء الرجال مشکوة ص ۵۹۱)

۱۹ ـــــ لومړنۍ غزا چې حضرت خالد بن ولید د اسلام راوړلو نه وروسته پکې برخه واخیسته ، د موته غزا وه، چې په همدې غزا کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم لخوا د سیف الله لقب ورکړل شو . ( فقه السیرة النبویه ص ۳۸۵)

۲۰ ـــــ لومړنی شخص چې له مدینې منورې څخه مکې مکرمې ته راغی، حضرت اسعد بن زراره د سعد بن زراره ورور وو .

۲۱ ـــــ لومړنی کس چې د قسطنطینیې دروازه یې په توره ووهله او ماته یې کړه، عبدالله بن کلیب وو . (المعارف ص ۲۴۲)

۲۲ ـــــ لومړنی شخص چې د بدر په غزا کې په شهادت ورسېد ، مهجع نومېده ، چې د حضرت عمر رضي الله عنه غلام وو او د انصارو لومړنی سړی چې په بدرکې په شهادت ورسېد ، حضرت حارثه بن النعمان وو . (طبراني ص۱۵۵)

۲۳ ـــــ هغه غزا چې حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم پکې «لوی بیرغونه ) عربي کې ورته رایات وایي ؛ له ځان سره راوړي وو ، د حنین غزا وه، له دې نه مخکې به یې (واړه بیرغونه) عربي کې ورته لواء وایي ؛ له ځان سره د جهاد ډګر ته وړل . (سیوطي ص ٦۳)

۲۴ ـــــ لومړنی شخص چې د الله تعالی په لاره کې یې خپله وینه تویې کړه، حضرت سعد بن ابي وقاص وو .(سیوطي ص ٦۰ بحواله اوایل ابی هلال عسکري)

۲۵

ـــــ لومړنی شخص چې د احد په غزا کې په شهادت ورسېد، د عبدالله او د حضرت جابر رضي الله عنهما پلار وو . (سیوطي ص٦۲)

۲٦ ـــــ لومړنۍ غزا چې مسلمانان پکې په کامله توګه کامیاب شول او زیات شمېر مشرکین پکې قتل شول او د اسلام شان و شوکت ورسره لوړ شو ،د بدر غزا وه . (اوایل ابي هلال عسکري ص۸۵)

۲۷ ـــــ لومړنی آیت چې د جهاد په هکله نازل شوی دی، دا قول د رب العالمین دی : أذن للذين يقاتلون بأنهم ظلموا ! و ان الله على نصرهم لقدير [حج ۳۹] (طبراني ص ۱۴۴شماره ۱۰٦۱)

۲۸ ـــــ لومړنی شخص چې په غزواتو کې یې کتاب ولیکه ، حضرت عروه بن الزبیر وو . (سیوطي بحواله امام ذهبي ) په طبقات ابن سعدکې دي ، چې لومړنی شخص چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم مغازي یې راټول کړي دي ، محمد ابن اسحاق دی .

۲۹ ـــــ لومړنی کس چې په مکه مکرمه کې یې د اسلام دین په ډاګه کړ،

حضرت بلال رضي الله عنه وو . (اسماء الرجال مشکوة ص۵۸۷)

۳۰ ـــــ لومړنی بادشاه چې په سمرقندکې د خپل زوي له لاسه پـه شـهادت ورسېد، میرزا الغ بیگ بن شارخ بن امیر تیمور وو ، چې د خپل زوی عبد اللطیـف لخوا شهیدکړای شو . ( تاریخ غبارص ۲٦۸،کشکول سلیمي ص ۲۳٦)

۳۱ ـــــ لومړنۍ پېغله چې په افغانستان د انګرېزانو د یرغل پـه وخت یـې د جنګ ډګر ته را ودانګل ، د کندهار د میوند ملاله بي بي وه . (تاریخ غبارص ٦۳۸)

۳۲ ـــــ په مهاجرینو کې لومړنی شخص چې مدینې منورې ته یـې هجـرت وکړ، حضرت مصعب بن عمیروو . (طبراني ص۱۴۳) علامه سیوطي فرمـایي : چې ابو سلمة بن عبدالاسد وو .

۳۳ ـــــ لومړنی شخص چې حبشـې ته یې له ټولو نـه مخکـې پـه دویـم ځـل هجرت وکړ، خالد بن سعید بن العـاص وو . (سیوطي ص۸۳)

۳۴ ـــــ لومړنۍ ښځه چې مـدینې منورې ته یې هجرت وکړ، د حضرت عـامر بن ربیعه مېرمن لیلی بنت ابي حشـمه وه . (تاریخ ابن کثیـرص ۱۹۵ج۳،سـیرت ابـن هشام ص ۸۲ ج ۲)

# د استعمار ژرنده تل د غلامانو په وینو چلیږي

**د نړۍ د تاریخ پاڼي شاهدې دي:**

**چې صلیبي اِشغالګرو همېش خپل روزل شوي ګوډاګیان د ځان لپاره د ډال په توګه استعمال کړي دي.**

**اې غولیدلی عسکره! ته د یوه باطل هدف لپاره قرباني کیږي.**

**ته د نیویارک او واشنګټن د امنیت لپاره خپل قیمتي ژوند له لاسه ورکوي.**

**اې عسکره! ستا غلام صفته مشرانو د کفارو د ګټو خوندي کولو لپاره په افغان اولس پردی جنګ تحمیـل کـړی، او په لاشعوري توګه ته د یوه اجرتي قاتل دنده اجرا کوي او د خپل اولس ویني تویوي.**

**اې عسکره! ته د استعمار په خطرناک جال کې ګیر یې، ته یواځې د هغه جګړه ایزې نقشې له مخې عملیات تـرسره کوي چې د امریکا د خفیه استخباراتو له خوا یې درته طرحه جوړه شوي وي.**

**اې عسکره: ته د وطن یا کفن په رنګینو او غوړو شعارونو غولول شوی یې او په لاشعورې توګه د کفـر پـه نفـع او د اسلام په نقصان کارول کیږي.**

**اې عسکره! راشه د انسانیت په تله ځان او خپل عقل وتله**

**نور سرزوري پریږده**

**نور ځان هلاکت ته مه اچوه**

**نور د غربي مسافرو ایجنټانو د چوکۍ لپاره ځان مه وژنه**

**نور د خپل ملت له وژلو لاس واخله**

**نور په خپلو تیرو کړنو الله ته توبه وباسه**

**ایا چې ستا اته څلوېښت سُپر باداران ملکونه مې مات کړل ته غلام په دا مذبذبه عقیده او نشت وسـایلو زمـا مقابلـه نـه شي کولای، نور په ځان رحم وکړه او خپل بچیان، ښځه، مور دي د غم او ویر په ټغر مه کینوه. ( احمد علی)**

# يهودان ولې برلاسي دي !؟

ابو ظهير

نن سبا دا پوښتنه نږدې هر چېرې او له هر چا سره شته ده، چې کم شمېر يهودو څنګه په مليارډونو او مليونو نور انسانان پخپل موټي کې نيولي دي او هغوي يې خپلو ارادو او مقاصدو ته تابع ګرځولي دي. دا پوښتنه رښتيا هم په صحيح توګه ځوابول څه ساده او اسانه خبره نه ده او نه په يوه ليکنه يا مضمون کې ځوابېدلی شي، بلکې ځوابولو لپاره يې بسته کتاب ليکلو ته اړتيا ده.

دا چې موږ د يوې اوږدې مودې راهيسې په ټوله کې د لويديځ سازشونه او د هغوي استعماري پلانونه او د مسلمانانو پر خلاف د هغوي ستراتيژيانې په ښه غور سره ګورو او لولو يې، چې د لويديځ د استعماري پلانونو او ارادو تر شا يهودان قوي لاس لري، بناً د يهودو عزايم او د هغوي پلانونه د ټول انسانيت لپاره خطرناک دي.

يو عالِم ليکلي دي: د صهيونستانو او يهوديانو مثال هغو سرکشو پيريانو ته ورته دي؛ چې هغوي انسانانو ته د ضرر رسولو لپاره په ښکاره او برملا نه را درومي، بلکې په پټه طريقه باندې انسان ته د ضرر رسولو کوښښ کوي، هغوي تر هر څه وړاندې د خلکو په اذهانو حاوي کېږي او د هر هغه سړي چې ارادي قوت مضبوط وي، د هغوي( پيريانو) په قبضه کې نه راځي، ددې لپاره هغه(پيری) لومړی د انسان ارادي قوت کمزوری کول غواړي او په عجيبو او غريبو حرکتونو کولو سره انسان ډاروي، تردې پورې چې هغه دومره کمزوری او ويې ځپي، چې هغه خپله د کوم سوچ او تصميم نيولو وړ پاته نشي، له دې وروسته هغه انسان د هغه (پيري) د خوښې تابع شي او د هغه په خوښه پاڅېږي او ځملي. سرکش پېری پر دې هم پوهېږي؛ چې هغه سړی څرنګه په خطرناک نه خطرناک کار کې استعمالولی شي، هغه د څومره وخت پورې د خپلو شرارتونو لپاره کارولی شي او ترکومه پورې هغه انسان د خپلو شيطاني ارادو لپاره استعمالولی شي؟

کله چې هغه دومره ډېر استعمال کړي، چې د څه کولو قابل پاته نشي، بيا ترې هغه (پېری) لاړ شي او دی تش کالبوت پخپل حالت پرېږدي.

د يهودو کاري طريقه هم دېته ورته ده، دا چې د هغوي اصل غلبه د زمکې، دولت او طبعي زېرمو په نيولو نه ده؛ بلکې د اذهانو په نيولو ده، يهودان د انسانانو د مغزونو سره لوبې کوي او هغه د خپلو ګټو خوندي کولو لپاره استعمالوي او له دې وروسته د زمکې طبعي زيرمې او حکومتونه هم ددوي لاس ته لوېږي، د دې لوبې اسانولو لپاره هغوي لومړی د قومونو اعصاب کمزوري کوي، هغوي ډاروي او حواس باخته کوي يې. د ډار پيدا کولو لپاره هغوي تر هر حده تللی شي، هغوي د

هېوادونو ترمنځ جنجالونه پيدا کولی شي، هغوي خپل مينځ کې جنګوي، په ژبنيو او فرقيبزو دښمنيو کې يې ښکېلوي او په خلکو کې مصنوعي قحطونه او ناروغۍ خوروي، لنډه دا چې د يهودو چې هر څومره وس رسيږي، هغوي تر هغه پورې د خپلو شيطاني اعمالو او سازشونو له کولو څخه اجتناب نه کوي.

څو پېړۍ وړاندې د هغوي د شيطانت استطاعت يواځې تر کليو، ښارونو او خاصو قومونو پورې محدود وو او په نړۍ کې د خلکو ارادي قوت هم پياوړی و، په دې وجه د يهودو پر وړاندې عموماً خنډونه او موانع زيات وو، ليکن په وروستيو پېړيو کې د هغوي شيطاني کردار او سازشونو نړيوال حيثيت غوره کړی دی، نو اوس په همغه تناسب د خلکو ارادي قوت کمزوری کوي، په خاصه توګه د تېرو دوه پېړيو راهيسې د هغوي د سازشونو په وجه ټوله نړۍ اغېزمنه شوې ده او له امله يې نړيوال متاثر شوي دي.

تردې پورې چې نن سبا يهودان د لويو لويو جنګونو د رامنځته کولو او په نړۍ کې د قومونو او ولسونو د وژلو صلاحيت لري. څرنګه چې په دولسمه پېړۍ کې د صليبي جنګونو د حقيقت رسوا کېدو وروسته اروپايانو د فلسفيانو، طبيبانو، اديبانو، شاعرانو او پوهانو د اذهانو په تسخيرولو لاس پورې کړ او د هغه په مرسته يې د هيوادونو دننه سياسي، قضائي، پوځي، تعليمي او اقتصادي نظامونه اغېزمنولو توجه کړې وه، د کومې په مټ چې هسپانيې، فرانسې، جرمني او برتانيې تر څو لسيزو پورې خپلې موخې او ګټې خوندي کولې او هيڅوک د هغوي د دام د لومو نه بيرون پاته کيدای نه شول.

نن ورځ بعينه يهودان هم دومره فکري او ذهني غلبه لري، چې د نړۍ ډېر ځواکمن او قوي خلک هم د هغوي نوم بې احتياطه نه اخلي.

د شک پرته نن سبا نړۍ د يهودي سازشونو په وجه د ګڼو جدي ګواښونه ښکار ده او د هغوي له لاسه نړيوال د مختلفو ستونزو او مشکلاتو په يو داسې ګرداب کې حصار دي چې د هغه نه په اسانه بېرون ته د وتلو چانس نه لري.

نو اوس نو اړتيا ده چې نړيوال بايد يهودي سازشونه او د هغوي انسانيت ضد پلانونه وپېژني او د هغوي د اضرارو او ګواښونو څخه د نړۍ او انسانيت ژغور لپاره دې غور وکړي، ځکه يهودان په نړۍ کې د يهودي فاشېزم په لور درومي، هغوي د نړۍ د هېڅ دين، مذهب او قوم پيروانو لپاره په زړونو کې رحم نلري. هردين، هر مذهب او هر قوم نابودول د هغوي عمده هدف دی.

هو! هغه څوک چې د الله تعالی په ذات باندې ايمان لري، هغوي ته پکار ده، چې د يهودانو سازشونه هغسې ناکام او خنسا کړي، لکه کوم شخص چې په الله تعالی قوي ايمان لري، هغه د پېريانو په قابو کولو کې هم برلاسي وي، نو په ورته توګه هغه کولی شي چې يهودي «پيريان» هم پخپل قابو کې راولي.

همدا راز ددې لپاره اړتيا ده چې مسلمانان خپل ارادي قوت پياوړی کړي د يهودو د برترۍ او تفوق ذهني مرعوبيت له مغزو وباسي او د هغوي د ټولو سازشونو او شيطاني کردارونو په وړاندې مقابلې ته په بصيرت، حکمت او قوي عزم سره پورته شي.

پای

## حاضر ځوابه!!

دانګلستان پخوانی لومړی وزير چرچل ته ديوې جلسې پرمهال يوې ښځېنه وويل:
"که ته زما ميړه واې خواړو کې مې زهر درکول"
چرچل ورته ځواب ورکړ:
نه اغلې!! که ته زما ښځه وای ما خپله زهر خوړل.




إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ (توبه :۱۱۱)

ژباړه : " یقیناً الله جل‌جلاله له مومنانو څخه د دوي ځانونه او د دوي مالونه په دې عوض ( پېرودلي)اخیستي دي، چې بې شکه دوي لره د الله جل‌جلاله په وړاندې جنت دی د پېرودلو صورت یې دا دی چې (دوي د الله جل‌جلاله په لار کې جنګېږي ، نو دوي کفار وژني او دوي هم کله د هغوي له پلوه وژل کیږي" .

د شهید موسی کلیم شهرت :

شهید موسی کلیم د ملا عبدالحکیم شاکر زوی د شهید ملا عبدالله اخند لمسی دی، د طالبانو د حکومت په لومړي کال د اروزګان ولایت دهراود ولسوالۍ مرکز کې په یوه دینداره او مجاهد پروره کورنۍ کې دې دنیا ته سترګې غوړولي.

## د شهید موسی کلیم زده کړې:

**الف :عصري زده کړې!**

دا چې د شهید موسی کلیم عصري زده کړو سره هم ډیر شوق او علاقه وه، او غوښتل یې چې د دیني زده کړو سره سره عصري زده کړې هم وکړي نو الفجر د شرعي او عصري علومو د لوړو زده کړو انستیتیوټ یې انتخاب کړ، دا چې الفجر انستیتیوټ په دریو برخو (لېسانس، په ژبو کې یو کلنه ډیپلومه او ځلور میاشتني لنډ مهاله کورسونو) کې شرعي او عصري زده کړې شروع کړې، شهید موسی کلیم هم غوښتل چې په یاد انستیتیوټ کې د ذکر شویو برخو څخه برخمن شي او په اداره (لېسانس، اردو ډیپلوم او دري) ځلور میاشتني لنډ مهاله کورسونو (کې یې خپلو زده کړو ته دوام ورکړ ، بالأخره زده کړو یې جریان درلود خو محصل موسی کلیم شهید شو.

**ب :دیني زده کړې!**

شهید موسی کلیم ابتدایي زده کړې د اروزګان ولایت دهراود ولسوالۍ د میانډو په سیمه کې د شیخ الحدیث مولوي محمد صاحب سره کړې دي، په ۲۰۰۳م کال کې د شهید موسی کلیم سپیڅلې کورنۍ پاکستان هیواد ته هجرت وکړ، خو شهید موسی کلیم د خپل معزز استاد سره پاتې شو .۲۰۰۵م کال کې کله چې شیخ الحدیث مولوي محمد صاحب هلمند ولایت مرجې ولسوالۍ ته راغی شهید موسی کلیم هم ور سره و .په ۲۰۰۹م کال کې پاکستان هیواد ته لاړ او هلته یې د لومړي ځل لپاره په قلعه عبدالله خان کې د شیخ الحدیث مولوي محمد ظریف صاحب مدرسه کې خپلو زده کړو ته دوام ورکړ .په ۲۰۱۱م کال یې د جنګل پیر علیزي په مدرسه حقانیه کې زده کړې وکړې، په

۲۰۱۲م کال یې په چمن کې زده کړې وکړې، په ۲۰۱۳م کال یې په کویټه کې زده کړې وکړې، په ۲۰۱۴م کال یې بیا د جنګل پیر علیزي په یوه مدرسه کې داخله واخیسته، په ۲۰۱٦م کال یې د قلعه عبدالله خان په یوه مدرسه کې خپلې زده کړې وکړې .

په ۲۰۱۷/۱۸م کلونو کې یې د پېښور ښار په جامعه زبیریه کې د شیخ الحدیث والقرآن مولانا رحیم الله حقاني صاحب سره وړه دوره شروع کړه چې بالأخره په همدغه مدرسه کې د شهادت لوړ مقام ته ورسید .(انا لله واناالیه راجعون)

**د شهید موسی کلیم جهادي سلسله:**

شهید موسی کلیم لومړی جهادي خدمت د هلمند ولایت ځخه شروع کړی، او وروسته په اروزګان ولایت دهراود ولسوالی کې په جهادي خدمت مصروف و، چې په یاده ولسوالی کې یې ډېر جهادي خدمتونه سر ته رسولي.

شهید موسی کلیم خپل امیر او ملګرو ته ډېر ګران وو، تر دې چې کله به اطاق ته راغی د امیر او ملګرو خدمت هم دده په غاړه وو.

د شهید موسی کلیم یو کاکا شهید ملا عبدالمنان سیف الله او دوه ورونه شهید جمع خان سیف الله او شهید حافظ عبدالمجید سیف الله په دغه انقلاب کې د امریکې او د کابل غلامې ادارې سره د جهاد په سپېڅلي سنګر کې شهیدان شوي دي.

د شهید موسی کلیم یو کاکا او یو ورور، مور او پلار ژوندي دي.

**د شهید موسی کلیم شهادت:**

شهید موسی کلیم په جامعه زبیریه کې په داسې حال چې د وړې دورې سبقونو جریان درلود، د دین او قران د دښمنانو لخوا په ۲۷October//۲۰۲۰م کال چې د ۱۰/۳/۱۴۴۲هـ ق کال سره سمون خوري، مدرسې ته د راوړل شویو چاودېدونکو موادو د انفجار په واسطه په شهادت ورسید.

انا لله واناالیه راجعون.

# فَساد اداری از کجا منشا می‌گیرد؟

امت خبر

**اخیراً نشست سالانه‌ی اتحادیه‌ی اروپا برای مبارزه با فساد اداری در افغانستان در کابل برگزار شد .درین نشست سفیر اتحادیه‌ی اروپا از فساد گسترده در افغانستان ابراز نگرانی کرده‌است .در عین حال حکومت افغانستان از ایجاد کمیسیون مبارزه با فساد اداری خبر می‌دهد .پیش از این نیز سیگر گزارش داد که مبارزه با فساد در افغانستان درحد حرف بوده‌است و تعهدات در این راستا عملی نشده‌اند.**

**فساد در افغانستان چیزی تازه‌ای نیست و در دو دهه‌ی اخیر حاکمیتِ دموکراسی در کشور چرخ فَساد به سرعت در حرکت بوده و درین مدت هر گونه تلاش حکومت و نهادها برای مبارزه با فساد ناکام مانده‌است.**

**حالا مردم افغانستان به این نتیجه رسیده‌اند که فساد جزء لاینفک نظام فعلی است و تا کپیتالیزم/دموکراسی است، فساد نیز است .مشکل فساد با ایجاد کمیسیون‌ها و نهادها در دِل نظامی که بُن مایه‌ی فساد است، حل نمی گردد .زیرا نظام حاکم از اساس بر پایه‌ی مفاهیم فسادزا؛ نظیر منفعت محوری، سعادت و خوشبختی و استفاده‌ی اعظمی از لذت‌های دنیوی استوار است که به گونه‌ی طبیعی درِ جامعه فساد را ترویج می‌کند .وقتی در جامعه و دولت هر فرد در جستجوی مفاد شخصی، قدرت و لذت های دنیوی باشد طبعاً دست به فساد می‌زند .در کشورهای غربی نیز فساد وجود دارد و تنها ابعاد و نوعیت آن فرق می‌کند.**

**فساد ریشه در تطبیق نظام حاکم دارد، زیرا در نظام سرمایه‌داری پول و قدرت دو روی یک سکه اند و ترویج افکار و ارزش‌های سرمایه‌داری اساس فساد را تشکیل می‌دهند.**

**بناءً اسلام است که با ترویج فرهنگ و ارزش‌های اسلامی؛ چون :صداقت، امانت‌داری، راستی و ترس از آخرت و تطبیق حدود اسلامی جلو فساد را می‌گیرد و این تنها به وسیله‌ی نظام راستین اسلامی ممکن است و بس.**

# رښتیا هم ته ګټونکی شوې

ثناءالله معصوم

په ترووږمۍ کې د يو ستړي مسافر داستان، نه پوهیږم له کومه او څنګه پیل کړم..؟

که يې د غیرت او مېړانې په باب څه ولیکم، شاید قلم او کاغذ يې تاب رانشي- وړای، که يې د تقوا پاڼه راواړم ممکن عقل يې له ادراک څخه عاجز شي، که يې آینده نسل ته د ستړيا او استقامت په اړه ولیکم چې په ښایسته او منور مخ يې د ملغلرو خولو د امیل اوبزانېدل او د ستړيا د نه احساس کول او په مسکا يې د قبولیت دعا کول د عادتونو او انساني تقاضاوو سره برابر نه وو، ممکن آینده نسل يې مثال پیدا نشي کړای.

هوکې ..!

د ترووږمۍ ددې ستړي مسافر قدم د خپلو مبارکو اسلافو په پل او د هغوید تاریخ د پاڼو له انځوره الهام اخیسته.

کله چې حجاج ابن یوسف د هند په ځمکه د خپلو دوه قمندانانو شکست ولید، په دریم ځل يې د خپل کم عمره ځوان وراره محمد ابن قاسم رحمه الله د جنګي پوځونو اعلٰی قمندان او امیر مقرر کړ، د پوځ ډېرو مشرانو يې په اړه خپل نظرونه وړاندې کړل، چا ویل عمر يې کم ده، چا ویل د هند له لوی پوځ سره يې ټکر راځي، چا ویل له ده نه وړاندې مو زړور قومندانان شهیدان شول؛ داسې څوک باید مقرر شوي وای چې هم يې له هندوانو غچ اخیستی وای او هم يې فتحه لاسته راوړې وای، خو حجاج يې یوازې نظرونه واریدل او بس.

محمد ابن قاسم ولس کلن ځوان د تاریخ د باب هغه ستوری شو چې په اسلامي تاریخ کې يې د خالد ابن ولید رضي الله عنه تر شاه خپل نوم ثبت کړ.

مونږ ویاړو، په داسې ویاړلي تاریخ او مفاخرو او ویاړو؛ چې اوس مو هم کاروان د نیمګړتیا حس نه دی کړی، د تاریخ مختلف پړاوونه تیر شوي، خو لله الحمد مونږ په هره پیړۍ کې د خپلو اسلافو د تاریخ په نقش او قدم روان او تاریخ مو روڼ ساتلی دی. دادی دوه ویشتمه پیړۍ ده، بیا د داسې يو چا په یاد او تاریخ قلم څرخوم، چې کارنامې او اتلولۍ يې اذهان د محمد ابن قاسم د تاریخ تر پاڼو بیايي.

د بدریانو د لاروي د استشهاد د سپیڅلې مېنې د پتنګ، د کلک ایمان او مضبوطې عقیدې څښتن د اتل شهید مولوي حمیدالله ذاکر تقبله الله د ویاړلي تاریخ او کارنامو ته لنډ نظر کوو.

**پېژندنه:**

ملا حمیدالله ذاکر د مرحوم حاجي صاحب محمد حسین زوی د لوګر ولایت د محمدآغې ولسوالۍ د برګ د کلي په یوه دینداره، مجاهد پاله کورنۍ کې په ۱۹۹۶ میلادي کال کې دې فاني نړۍ ته سترګې غړولې وې، د نوموړي مجاهد پاله کورنۍ د هېواد د نورو افغانانو په څېر د شوروي د وحشي اشغال له وجې ګاونډي هېواد پاکستان ته مهاجر شول او هلته د پښتونخوا د باغبانانو د مهاجرو په کمپ کې له نورو مهاجرو افغانانو سره مېشت شول او شهید حمیدالله ذاکر هم له نن نه څلورویشت (۲۴) کاله مخکې د هجرت په دیار باغبانانو کې دې نړۍ ته سترګې وغړولې.

**زدکړه:**

ملا حمیدالله ذاکر خپله ابتدائي عصري زده کړه د خپل کلي په لیسه (میرویس هوتک) کې تر لسم صنف پورې حاصله کړه او د عصري زده کړې تر څنګ یې دیني زده کړه هم د خپل کلي له ملا امام څخه جاري ساتلې وه.

له دې امله چې د نوموړي کورنۍ جهادپاله او علمي کورنۍ وه او د شهید ذاکر تقبله الله د شخصي ذوق له وجې د عصري زده کړو لړۍ تم او په ۲۰۱۲ م کال کې د مدرسې په مبارک انګړ قدم کېښود.

خپله دیني زده کړه یې د خیبرپښتونخوا په مشهورو مدارسو کې لکه جامعه ضیاء العلوم محمدیه هریپور، جامعه نورالمدارس باغبانان، جامعه اشرفیه پېښور، جامعه حبیبیه بوړۍ تاج آباد او بیا یې موقوف علیه (وړه دوره) په جامعه زبیریه دیرکالونۍ کې له شیخ الحدیثمولانا رحیم الله حقاني صاحب سره په ۲۰۲۰ میلادي کال کې اختتام ته ورسوله.

**جهاد او مبارزه:**

شهید طالب العلم حمیدالله ذاکر له کم عمرۍ سره سره الله ج په لویو کمالاتو نازولی وو، د جهاد او شهادت مینه یې له وړکتوبه په رګونو کې نغښتې وه، بلآخره د خپلې مینې د پوره کېدو په تکل په کال ۲۰۱۰ میلادي کې د جهاد او مبارزې میدان ته ملا تړلی راووت او د شهید مولوي احمدالله (همام) تقبله الله په مشرۍ یې جهادي فعالیت ته شروع وکړه.

دده دکم عمري له وجې دده د ډېر اسرار سره سره په لومړي کال آمرینو ده ته د تشکیل د تګ اجازه ورنکړه، چونکې د شهید ذاکر د شهادت د مینې تلوسه دومره زیاته وه چې په دوهم کال یې د بدري لښکر په استشهادي کنډک کې د فدایي عملیاتو د اجرا لپاره داخله واخیسته، دده د ذکي او هوښیار ذهن او کمالاتو په لیدلو سره د بدري لښکر مسؤلینو هم ده ته د عملیاتو د اجرا اجازه ورنکړه او د دوه کالونو انتظار څخه وروسته نوموړی بیرته د خپلو همسنګرو ملګرو سره د جهاد او مبارزې میدان ته راووت، او د لوګر په مختلفو سیمو کې یې د اسلام د غازیانو سره اوګه په اوګه د جهاد او قربانۍ ډګر ګرم ساتلی و.

شهید حمیدالله ذاکر د دښمن په وړاندې په ډېرو سختو او ګڼو عملیاتو کې شرکت کړی و، چې له جملې یې د بېلګې په توګه ځینو عملیاتو ته اشاره کوو.

په ۲۰۱۷ م کال د لوګر ولایت د مرکز اړوند د الوزیو په سیمه کې د کابل د اداري پوسته چې په خورا کلک او مظبوط شکل جوړه شوې وه او د مجاهدینو لپاره د عملیاتو په مخنیوي کې یې ډېر رول لره، مجاهدینو غوښتل چې په یاد مرکز تعرضي عملیات تر سره کړي، خو د عملیاتو د پلان مطابق د برید لپاره استشهادي مجاهدینو ته هم ضرورت وو، د صحنې د مجاهد په قول د امیر له ډېر اسرار سره سره نوموړی د استشهادي مجاهدینو په صف کې ودرید او په ډېره مینه یې د استشهاد د ارمانجنې مینې د پوره کیدو په تکل د جګړې میدان ته روان شو، له ډېر سختو او کامیابو عملیاتو څخه وروسته شهید حمیدالله ذاکر چې د لوی رب د تقدیر له مخې ورته د شهادت نېټه نه وه لیکل شوې، بېرته

ژوندی تر خپلو ملگرو راورسېد او يوازې يې په بدن د جهاد د ډگر څه يادگارونه (ټپونه) راوړل.

همدا راز يې دښمن ته په ډېرو نورو لويو او چيريکي عملياتو کې د سر او مال درانه زيانونه اړولي؛ چې ليکل يې دلته ناشوني دي.

**مسؤليت:**

شهيد مولوي حميدالله ذاکر د پوره تقوا او شجاعت څښتن و، دده د کمال او ديانت له برکته په لوگر ولايت محمدآغې ولسوالۍ کې د يوې رسمي ډلگۍ د سرپرستۍ چارې ورپه غاړه شوې، چې په ډېر کم وخت کې يې د خدمتونو ثمره د سيمې مجاهدينو او عامو مسلمانانو ته معلومېده.

**د شخصيت په اړه يې څو کرښې:**

شهيد ملا حميدالله" ذاکر "د کاملې تقوا او ديانتدارۍ څښتن و، لوی رب ورته لوړ استعداد او لوړ فکر ورکړی و، مينه ناک د ملگرو تر مينځ د خوش طبعۍ او مېلمه پالنه يې ځانگړي عادتونه وو. په سيمه کې يې له ولس سره ښه چلند ددې باعث گرځېدلی دی؛ چې اوس د خپلې سيمې خلک دا احساس کوي چې د دوي کوم ورور شهيد شوی او غم دده په سر ناست دی.

شهيد حميدالله ذاکر همدا راز په دښمن باندې د سختو عملياتو ډېر حريص و، تل به په دې هڅه کې وو چې د دښمن په وړاندې داسې عمليات ترتيب کړي چې دښمن ته پرې درانه تلفات واوړي.

د شخصيت په اړه يې مولوي صاحب عبدالله" حسيني " ليکي؛ زما ورور شهيد ملاحميدالله" ذاکر "دين ته وفادار، امارت ته مخلص او د نر دريځ څښتن شخصيت و.

په کلي کې يې کليوالو دا خبره بدرگه کوله چې د پيروز ابا (چې په کلي کې يو مشهور دلسوزه سپينږيری تير شوی و) له مرگ نه ورسته دومره خلک په چا نه وو خفه شوي، لکه په ده چې خفه شول.

**کرامت يې:**

نوموړی چې کله شهيد شو، له دفن نه څو ورځې وروسته زمونږ يو خپل په خوب ليدلی و، چې د قبر زيارت ته ورشم؛ گورم چې د قبر خوا کې ولاړ وي او خاندي، ما ورته په ډېر تعجب کې وويل چې ته خو شهيد شوی نه وې..؟

نو ده راته وخندل او بيا يې وويل چې زما دبدن څه حصه د غسل په ځای کې پاتې ده هغه راته راوړه، دی وايي: چې زه له خوبه راجگ شوم او ډېر تعجب مې وکړ او لاړم پلټنه مې وکړه نو په کور کې چا راته وويل چې چېرته مو غسل ورکړ هلته يې د ږيرې څه حصه پرته وه، مونږ راواخيسته او هلته مو خښه کړې ده، چې ورغلم همدلته مو همغه خښه ځرمن راواخيسته او په قبر کې مو ورسره خښه کړله.

**شهادت:**

شهيد ملا حميدالله ذاکر په کال ۲۰۲۰/ميلادي د جون د مياشتې په لسمه نېټه د کابل گرديز په لويه لاره له دښمن سره په مخامخ جگړه کې د شهادت لوړ مقام ته ورسېد.

او د لويې دورې د دستار فضيلت ستر ارمان يې نيمگړی خو د شهادت لوړ او عظيم ارمان يې پوره شو.

نحسبه کذالک والله حسيبه.

* * *

# علماء او د ټولنې مسئولیتونه

ثناءالله معصوم

عالم د تورتمونو او د جهل د اژدهاوو په وړاندې په هره پیړۍ کې امت له هلاکت او بربادې څخه ژغورلی شي، دوي د علم په مشال د تیارو سینې تل د رڼا په مخ پرانیستی شي، خو که یې علم ته د علم او مسئولیت ته د مسؤلیت په سترګه وکتل.

هوکې؛ په هره پیړۍ کې که اسلامي امت د کفر ځپو په مخ کړی وي، همدغو علماؤ د کفر ځپې تم کړي او امت یې له هلاکت څخه ژغورلی دی.

ولې عالم د امت د بربادۍ او د سر لوړۍ مسؤلیت په غاړه لري .؟

ځکه عالم د الله د خوږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم له طرفه په درونډ مسئولیت مأمور شوی دی، د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وراثت مقام او امت ته د اسلامي احکاماتو په پلي کولو سره عالم مأمور دی، چې په کامله طریقه به د الله د رسول د وراثت چارې په مخ وړي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم د الله ج له طرفه مونږ ته د اقتدا او د الله ته د رسیدلو قدوه (رڼا) تعین شوی دی.

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرْ. (الاحزاب)

ژباړه : په یقیني توګه د الله پیغمبر د هر هغه چا لپاره چې الله ته د ورګرځېدو او د آخرت ورځې ته هیله من وي، د نیکۍ یوه غوره نمونه ده.

اوس له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه وروسته د اقتدا چارې د هغه مبارک وارثانو په برخه رسیږي.

راځو! وراثان څوک او مسئولیتونه یې کوم دي او څه وخت عالم د رسول الله صلی الله علیه وسلم وارث ګرځي..؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :

إنَّ العلماءَ ورثةُ الأنبياءِ، وإنَّ الأنبياءَ، لم يُوَرِّثوا دينارًا، ولا درهمًا، إنما وَرّثوا العلمَ.(رواه ترمذي)

ژباړه : په تحقیق سره علماء د انبیاؤ وارثان دي او له انبیاؤ څخه په میراث دینار او درهم نه بلکې علم پاتې کیږي.

معلومه شوه چې نبي خپل وارث عالم پریښی او وارث باندې لازمه ده، چې د موروث په ټولو چارو کې به وراثت کوي.

رسول الله صلي الله علیه وسلم که یو طرف ته د مسجد نبوي امام او خطیب و، بل طرف ته د اصحاب صفه د مدرسې استاذ هم و. یو طرف ته که رسول الله صلی الله علیه وسلم په مدینه منوره کې د اصحابو پیشوا و، بل طرف ته د جهاد د سنګر یو امیر او مشر هم و، رسول پاک صلی الله علیه وسلم د محراب او ممبر له څنګه د جهاد د سنګر د قوماندې چارې هم په مخ وړلې. ځکه د هغه مبارک هدف د اسلامي نظام او د الله

# ديني مدارس

## او د هغوي د انحطاط لاملونه

❖ شيخ الاسلام مفتي محمد تقي عثماني صاحب
❖ ژباړه: محب الله وثيق

زموږ د ديني تعليمي نظام انحطاط عمده وجوهات څه دي او څرنګه دې مزل ته د ارتقاء په لور تغير ورکولای شو؟

استاد محترم شيخ الاسلام مفتي محمد تقي عثماني حفظه الله يې په اړه غږېدلی او د هغوي په لاملونو يې رڼا اچولې چې پښتو بڼه يې ستاسي مخې ته ږدو. (ژباړن)

له څه مودې راهيسې زموږ د ديني تعليمي نظام تربيتي او اخلاقي اړخونه د ارتقائي سفر په ځای د انحطاط او تنزل په لور روان دي، تر کومه ځايه چې ما غور کړی، دې پايلې ته رسېدلی يم ؛ چې زموږ د انحطاط بنيادي عامل او فکتور دا دی، چې نظام مو وروــ ورو رواجي شکل غوره کوي، او اصلي مقصد او هدف يې له نظره غورځي. که څه هم موږ په ژبه تل دا وايو چې زموږ د ټولو کوښښونو مقصد د «دين خدمت» دی، خو دېرځله دا خبره صرف د ګفتار تر حده پورې وي، او د زړه په تل کې ځای نه نيسي. که واقعاً زموږ زړونو دا خبره منلې وای، نو به مو د ژوند يوه شېبه هم په دې اړه له محاسبې څخه خالي نه وه او موږ به د خپلو اسلافو په څېر همېشه له ځان سره دا فکر کاوه چې آيا زموږ په کومه کړنه/فعل کې خو به د الله تعالی د رضاء مخالفت نه وي او زموږ موجوده طرز العمل د دين د خدمت لپاره ګټه لري که زيان؟

برعکس زموږ ټول توجيهات او هلې ځلې د مدارسو په ظاهري بڼه مرکوزې وي، چې په هغو کې د بنيادي مقاصدو کوم څرک نه ليدل کيږي. په عمومي ډول د مدارسو منتظمين دا کوښښ کوي چې څنګه د مدرسې شهرت زيات شي، څنګه مشهور استادان پکې راغونډ کړل شي او څنګه زما مدرسه او د هغې اهل الحل والعقد د عوامو په منځ کې مقبوليت تر لاسه کړي؟

زموږ خپل طرز العمل ددې ښکارندويه دی چې د مدارسو بنيادي مقصد همدا دی او ددې مقاصدو د حصول په غرض داسې لارې چارې په کار اچول کيږي؛ چې د دين او اهلِ دين له شان سره هېڅ اړخ نه لګوي، بلکې کله کله خو د هغو فرعي مقاصدو د حصول لپاره د غير مشروع ذرائعو په کار اچولو هم کوم باک نه کيږي او که په دې اړه کومه بريا تر لاسه شي او دوه ګامه تر نورو مخکې شي نو ګواکې دا د مقاصدو په حصول بريا بلل کيږي. خو دا چې د زده کونکو تعليمي، اخلاقي او ديني حالت څنګه دی، د معاشرې د قيادت په تمه څنګه افراد ترې راباسو او په رښتيني ډول زموږ له دې طرز العمل څخه دين ته څومره ګټه رسيږي، دا هغه پوښتنې دي چې په اړه يې څوک چندان غور نه کوي، او که وي هم د نشت په حساب دي.

ددې حالت بنسټيز لامل دادی چې موږ په ژبه خو د دين د خدمت نعره وهلې ده، خو په عملي ژوند کې مو دا مقاصد هېر کړي دي،

او د خپلو کوښښونو محور مو هغه ظاهري امور گرځولي چې یا خو شرعاً مطلوب نـه دي، او که مطلوب وي هم؛ په دې شرط چې د ذرائعـو درجـه ورکـړل شي نـه دا چـې اصـلي مقاصـد وگرځول شي.

همدا راز په عمومي ډول د استادانو د فکر محور دا وي چې د تدریس لپاره کوم کتـاب را وسپارل شي، څرنگه په شـاگردانو خپـل علمـي تفـوق ومـنلای شـم، پـه شـاگردانو کـې د مقبولیت کوم ذرائع په کار واچوم او ....چې زیاتره وختونه په دې نکته غـور نکیـږي، چـې کوم طرز العمل شاگردانو ته گټور دی، بلکې دې ته کتل کیږي چې آیا دا میتود د شاگردانو د خواهشاتو سره سمون خوري که نه؟ چې په نتیجه کې یې استادان د شاگردانو د لارښوونې او قیادت په ځای د هغوي د خواهشاتو تابع گرځي، ددې په ځای چې شـاگردان د اسـتاد د اتبـاع وکړي، استاد د شاگردانو د خواهشاتو لار نیسي.

په ماضي کې! په ځانگړې توگه مدارسو کې دا رواج و، چې د استاد او د شاگرد تر منځ تعلق، صرف یو رسمي او رواجي تعلق نه و چې تـر درسـگاه پـورې بـه محـدود و، بلکـې د هغوي تر منځ یو روحاني تړاو موجود و ، چې د ژوند تر پایه به نه شلېده. د اسـتاد مسـئولیت صرف د کتاب تدریس نه، بلکې هغه د شاگردانو مهربان پـلار، د هغـوي اخلاقـي او روحـاني مربي او د علم و عمل په میدان کې د یو شفیق نگران حیثیت درلود، حتی چې د شاگردانو په شخصي معاملاتو کې به هم دخیل و. د هغې نتیجه دا شوه چې شـاگردانو بـه د اسـتادانو لـه علمي استعداد څخه له استفادې سره سره اخلاقي روزنه هـم ترلاسـه کولـه، ایثـار، للهیـت، تواضع او داسې نور فاضله اخلاق به یې ترې جلبول او هر شاگرد به د خپـل اسـتاد د علـم او عمل ریښتینی عکاس و.

خو متأسفانه چې اوس دا پدیدې د «اساطیر الاولین» حصه گرځي، لامـل یـې هماغـه دی چې استاد خپل مقصد دا گرځولی، چې داسې تقریر وکړي چې د شاگردانو د خوښـې وړ وگرځي، خو دا چې دا تقریر هغوي ته څومره گټه لري؟ د شاگردانو د تثمیـر لپـاره هغـوي تـه کوم مکلفیتونه ور له غاړې شي، هغوي له درسگاه نه بهر څرنگه تعامل لري، د هغـوي کـوم ترجیحات زیانمن دي او ددې زیانمنو ترجیحاتو د له منځه وړلو څه لارې دي!.؟ پـه دې اړه غور کونکي نور په کمېدو دي. الا ماشاءالله

د دارالعلـوم دیوبنـد بنیـادي ځانگړتیـا چـې لـه املـه یـې لـه نـورو تعلیمـي مراکـزو څخه امتیازي حیثیـت غـوره کـړ، دا وه چـې هغـه د «علـم بـرای علـم» اداره نـه وه، بلکـې هغـه د انسـانانو داسـې روزنتـون و، چـې صـحیح العقیـده، ریښـتیني او پاخـه مسـلمانان پکې تیارېدل، هغه کسان چې تر گفتار یې زیات په کردار سره د اسلام تبلیغ کاوه.

نن سبا زموږ په ټولنه کې تر هر څه مخکې په مدارسـو کـې ددې روح د تـازه کولـو او ددې فکر د احیاء ضرورت دی، ځکه؛ که له دې پرته زموږ درسگاوې بریا تر لاسه هم کړي، هغه به محض د «علم برای علم» مرکزونه وي، د مدارسو قیام او په هغه کې څو محدود علوم تدریسول به مقصد وگرځي، چـې پـه اړه یـې د اروپا مستشرقین لا له وړانـدې سرگـرم دي، او موږ به له هغو مزایاوو محـروم شـو کـوم چـې ددې علومو د درس او تدریس لازمي شرط بلل کیږي.

هغـه اصـلي روح چـې ورځ تـر بلـې پـه مدارسو کې پیکه کیږي، د هغه د تازه کولـو او احیـاء ذمـه داري زمـوږ د دینـي مدارسـو د منتظمینو او استادانو پـه غـاړه ده. د هغـوي دا فریضه ده، چې لومړی د خپلو ذاتي اعمالو جاج واخلي؛ چې آیا دیني علومو زمـا پـه شخصـیت کې کوم رنگ پیدا کړی که نه؟ الهي خوف او د اخرت فکر مې څـومره زیـات شـوی، لـه اللـه تعالی سره د تعلق مې څه حال دی او د عباداتو ذوق مې څومره دی؟

د انفـاق في سـبیل اللـه چـې نـور ورتـه تشویقوو، خپله پکې څـومره حصـه دار یـو، د دین په خاطر د ځان او مال د مصرفولو جـذبې مې څومره ارتقاء کړې، د معاشرې د فسـاد لـه امله اضطرابي کیفیت او د هغه د اصـلاح فکـر مې څومره په ذهن کې خپور دی؟

دا ټول هغه څه دي، چې موږ یې باید پـه اړه فکر وکړو، که په ریښتیني ډول دې پوښتنو ته د عملي ځواب ویلو کوښښ وکړو، نو خامخا به له یو حسرت سره مخ کېږو، هغه حسرت چې موږ د خپل انحطاط په عواملو باندې فکر کولو ته رابولي، او هغه هم موقت نه بلکـې تـر هغـو پورې مستحضر وي، تر څو چـې د یـو روښـان راتلونکي لپاره مو مزل نه وي پیل کړی.پای




# د ټرمپ شکست

# او د جوبایډن نه دنړۍ تمه

■ حسن مومند

په امریکا کې په ترسره شویو انتخاباتوکې ټرمپ ناکام او جوبایډن میدان وګاټه؛ داچې پدې مادي نړۍ کې امریکا لا هم تر ټولو ستر نظامي ځواک او تر ټولو لوی اقتصاد دی؛ ترڅپل اغیز لاندې دنړۍ دساتلو او پر نړۍ د خپلو پرېکړو د تحمیلولولپاره اقدامات کوي؛ پکې هر ستر بدلون دنړۍ پر حالاتو مخامخ اغېزکوي نو ځکه یې هر بدلون په ټولې نړۍ کې دبحثونو سرټکی ګرځي.

دامریکااوسني د ۲۰۲۰م ولسمشریز انتخابات ډېر له جوش نه ډک او له مختلفو اړخونو بې ساري وو؛ دجمهوري غوښتونکو او دیموکراتانوګوندونوکارکونکي دخپلوګوندونو د بریالیتوب لپاره ډېر متحرک وو.

دامریکا ولسمشر ډونلډ ټرمپ کلک باوري و چې دامریکا دتېرو ولسمشرانو په څېر به دی هم په دوهم ځل په ټاکنوکې بریالی او په اسانه به د امریکا منتخب ولسمشر شي خو نتایج بیا دهیلو او اندونو عکس وو؛ ټرمپ ماتې خوړلې وه او جوبایډن بریالی شوی و.

د امریکا په تاریخ کې په ړومبي ځل داسې وشول چې د رایو اچونې دبهیر ختمېدو نه پس چې لا درایو شمېرنې لړۍ روانه وه ټرمپ خپل بریالیتوب اعلان کړ او ویې ویل: که په انتخاباتوکې بریالی نه شو نو دده پر ضد به د درغلۍ نه‌کار اخستل شوی او قصداً به ناکام کړای شوی وي.

د ټرمپ دې څرګندونو امریکایان او نړیوال حیران کړل او زیاترو شنونکو ټرمپ دسیاسي بصیرت نه یو بې برخې انسان وګڼلو.

بیا چې په رسمي ډول نتایج اعلان شول نو پکې معلومه شوه چې جوبایډن په داسې قاطع اکثریت سره کامیاب شوی چې د امریکا په تاریخ کې یو ولسمشر هم دومره زیاتې رایې نه‌دي اخستي، خو ټرمپ د انتخاباتو دنتایجو او دخپل شکست له منلو انکار وکړ او ویې ویل چې نتایج به په سترې محکمې کې چیلنج کړي ځکه چې ورسره درغلي شوی او قصداً ناکام کړای شویدی.

هسې خو د امریکا انتخابات ډېر دامن په فضا کې تر سره کېږي خو د ټرمپ له لورې د زشتې لهجې دکارولو له امله دواړو اړخونو ته عام خلک هم یو بل ته ډېر قهرېدلي ښکارېدل؛ مخکې به امریکایانو یو بل ته ویل چې فلانی ته یې رایه ورکړیده خو دا ځل دا نتخاباتو نه پس یو امریکایې هم دا نه وایې چې فلاني ته یې رایه ورکړیده تر څو یې پر ضد دمخالف له لورې کوم ناوړه اقدام ونه شي.

ټرمپ چې د تېرو ۴ کلونو راهیسې دامریکا ولسمشر و ټول هغه اقدامات یې وکړل چې پرې امریکایې ولس ویشل کېدای شو؛ دکورني او بهرني سیاست یې هیڅ سر اوپښې نه وې معلومې او نه یې دا غم کاوه چې څرګندونې او اقدامات به یې په هېوادکې دننه یا له هېواد نه بهر نړۍ کې ناوړه



غبرګونونه رامنځته کړي؛ څه یې چې په خولې راتلل هغه به یې ویل؛ څه به یې چې زړه منل هغه به یې کول؛ نفرت یې خپراوه او نورو ته به یې دنفرت په نظرکتل.

دمسلمانو مېرمنو پسې یې خندنۍ وکړې؛ خو ځلې یې دمخالفو رسنیو سپکاوی وکړ؛ دامریکا فیدرالي اداري یې هم په بدو نومونو یادې کړې؛ دمخالفو سیاسیونو پرضد یې بده ژبه وکاروله؛ دملي امنیت مشاور جان بولټن په وینا یې دسپینې ماڼۍ دمامورینو سپکاوی هم کاوه.

دانتقادونوکلتور یې ډېر عام کړ.

ټرمپ به دافغانستان په جنګ کې د وژل شویو فوځیانو لپاره هم ښه توري نه کارول ؛ په ۲۰۱۸م کال کې فرانسې ته دسفر پر مهال چې دټرمپ نه دامریکایې فوځیانو قبرونو ته د ورتللو دتقسیم اوقات پوښتنه وشوه نو ټرمپ په ځواب کې وویل: څه څه اړتیا لرم چې ددوئ هدیرې ته ورشم؛ دا هدیرې دناکامو خلکو نه ډکې دي.

شنونکي وایې چې ټرمپ به د سي آی ای اوپینټاګان مشورې او پلانونه، نه عملي کول؛ کومو سیمو ته چې امریکایې فوځیان تللي وو پینټاګون ترې دټولو فوځیانو د ویستلو طرفدار نه و خو ولسمشر ټرمپ د شام نه ټول فوځیان وویستل او دافغانستان نه یې هم دټولو فوځیانو ویستل اعلان کړل نو ځکه دټرمپ او پینټاګون تر منځ تر پایه روابط ترینګلي وو.

کله چې د یوسپین پوستي پولیس افسر په لاس دجارج فلایډ په نوم یو تور پوستی قتل او په نتیجه کې یې په ټولې امریکا کې سخت لار یونونه رامنځته او دپولیسو لپاره یې مخنیوی ګران شو نو ټرمپ د دوئ قابوکولو لپاره د فوځ د کارولوګواښ کړی و خو د دفاع وزیر مارک ریسپر ویلي و چې د ولس په مقابل کې د فوځ د راویستلو سره موافق ندی.

ولسمشر ټرمپ دپینټاګان دمشر پدې غبرګندونو سخت خفه شو.

په همدغو ورځوکې د دفاع پخواني وزیر جم میټس ویلي و چې ټرمپ امریکایې ولس ویشي او دمتحدکولو لپاره یې هیڅ هڅه نه کوي.

دټرمپ او پینټاګون ترمنځ جنګ سوړ جنګ نه و بلکې په ځنې وختونوکې به ټرمپ داسې غبرګندونې هم وکړې چې دپینټاګون لپاره به دزغم وړ نه وې؛ دانتخاباتي کمپاین پرمهال په ستمبر میاشت کې ټرمپ ویلي و چې د وسلو جوړونکو شرکتونو د خوشالولو لپاره پینټاګون دنړۍ په مختلفوبرخوکې جنګونه روان ساتلي دي؛ څه امریکا دنه ختمېدونکو جنګونو نه را وکاږم خوجنرالان زمامرسته نه کوي؛ څه دعامو فوځیانو خوښېږم.

د ټرمپ له سلوک نه داسې ښکارېده چې هیچاته یې احترام نه درلودلو؛ دنړۍ دهېوادونو سره د روابطو دخرابېد پروا یې نه ساتله او نه به یې د چا سره د اړیکو دښه کولو هڅې کولې؛ دناټو دغړو هېوادونو نه یې په لګښتونوکې دزیاتې ونډې اخستلو غوښتنه کوله چې له امله یې دامریکا او اروپا تر منځ واټنونه زیات شول خو ده یې هیڅ پروا ونه ساتله.

دامریکا دهر ولسمشرلپاره دامریکا ګټې تر ټولو زیاتې مهمې او هر یو دامریکا دګټو لپاره کارکوي خو دخپلوګټو

ساتلو او اهدافو لاسته راوړلو لپاره دټولوکړنلاره یو شان نه وي؛ ځني له کامیابې دیپلوماسۍ کار اخلي او په بریالیتوب خپلـه د واک دوره تېروي او ځنـي دزور ژبه کاروي او ناکامیږي؛

د ټرمپ کړنلاره داسې وه لکه چې یې دیپلوماسي هېڅ نه پېژندله؛ دخپلې واکمنۍ په ټولې دوره کې یې دخپلوکورنو مخالفینو او بهرنو مخالفو هېوادونو پر ضد یوائځې دزور ژبه وکاروله؛ خو له بده مرغه چې په نړۍ کې یې هیڅا هم د زور ځواب ونه ویلو.

په پیل کې یې زموږ پر ضد هم ډېره بده ژبه کاروله؛ فوځیان او فوځي طاقت یې هم زیات کړ؛ هغه چې تېر تاریخ ته نه کتل ګومان یې کاوه چې دنورې نړۍ په څېر به یې افغانان هم زور ته سرونه ټیټ کړي خو د خپل زور په مقابل کې یې چې د مجاهدینو زور ولید او د زورکړنلاره یې دلته په بشپړ ډول ناکامه شوه نو دخپلو فو ځي مشرانو پرلور یې خپله خوله راتاوه کړه سخت یې ملامت کړل او ځني یې په سختې بې عزتۍ له دندو ګوښه کړل؛ کله چې د جنګ ډګټلونه نا هیلی شو نو یې د جنګ ودرول او دخپلو فوځونو ویستل یې ګټور وبلل او د اسلامي امارت سره د مذاکراتو لار یې خپله کړه چې پکې یې ښه جدیت ښکاره کړ.

ټرمپ په امریکا کې مېشت کډوالو باندې یې دامریکا ځمکه سره تبۍ کړه؛ تور پوستو باندې د ظلم او وحشت حمایت یې وکړ؛ او سپین پوستي یې نسل پرستۍ ته ښه ډېر وهڅول.

دانتخاباتي کمپاین پر مهال یې دسپین پوستو دحمایت راجلبولو ډېرې هڅې وکړې؛ امریکا ته دراتلونکوکډوالو لپاره دسختو قوانینو جوړولو حامي و؛ غوښتل یې چې دنورې نړۍ نه دراغلو خلکو پرځای زیات کارونه اصل امریکایانو ته ورکړل شي؛ د ټرمپ دا فکر اوس زیاترو سپین پوستو ته ور منتقل شوی او په خپلو منځونوکې دا خبرې کوي چې یوائځې سپین پوستي دامریکا له وسایلو او اسانتیاو دګټې پورته کولو حق لري؛ باید افریقایې نسلو امریکایانو یا نورو ته ددې نه دګټې پورته کولو حق ورنکړای شي.

حـال دا چې سـپین پوسـتي پخپلـه هـم د امریکاخپـل اوسېدونکي ندي بلکې له نور لویدیځ نه راغلي دي؛ دوئ دا خبره هېره کړیده چې دامریکا په قانون کې ټول امریکایې اتباع برابر حقونه لري.

دسپین پوستو دحمایت د ترلاسه کولو لپاره ټرمپ د مکسیکو پر سرحد د ازغنو دیوالونو د جوړولو پلان جوړ کړ؛ د امریکا نه دنا قانونه کډوالو د ویستلو فرمانونه یې هم صادر کړل؛ اوکابو دهر مذهب دپیروانو سپکاوی یې وکړ؛ په امریکا کې د وبایې مرض کرونا دخپرېدا پر مهال یې دهغو خلکو حمایت وکړ چې ګرځ بندیز او ماسک کارول یې دشخصي ازادۍ خلاف ګڼل؛

د امریکایانو په اند دټرمپ ټول حامیان پدې اړه ډېر د احساساتو نه کار اخلي او وایې :موږ به د راتلونکي ۲۰۲۱ کال دجنورۍ له اولې نېټې نه پس ماسکونه غورځوو او دځان دساتنې لپاره هر امریکایې ته د وسلې درلودلو په حمایت کې به تحریک پیل کړو.

د ټرمپ د واکمنۍ تېر ټول ۴ کلونه د ټولنیز انتشار نه ډک وو چې تور پوستو ته یې د غلامۍ دور وریادکړ نو ځکه ویل کیږي چې دا یوائځې د ټرمپ نه بلکې د دټرمپ له لورې د خپرې شوې نسل پرستۍ او تعصب د ټولو افکارو او حرکتونو شکست دی.

رښتیا داده چې د امریکا جمهوري نظام په ډېرې تېزۍ مخ پر زوال روان دی او هغه اهداف یې تر لاسه نکړل کوم چې ددې نظام معمارانو په نښه کړي وو؛ نه رنګ او نسل پرستي له منځه ولاړه او نه د وسایلو د عادلانه ویش خبره عملي شوه بلکې د غریب او بډای تر منځ واټن ډېر زیات شو.

شعارونه د جمهوریت او دیموکراسۍ دي خو په اصل کې هر څه د هغه پانګوال زبېښاکګر نظام نه جاریږي چې

دبډای لاپسې بډای کېدل او غریب لاپسې غریب کېدل ددې نظام روح دی.

ټرمپ خوبیا دامریکا جمهوریت او دیموکراسي بیخي په شرمونو وشرموله.

خو پوښتنه دا ده چې ایا نوی ولسمشر جوبایډن به دټرمپ ټول سیاست رد او امریکا به د اوسني ستونزمن حالت را وه ویستلای شي؟

څوک په پوره باور په هو سره ددې پوښتنې جواب نه شي ورکولای ځکه چې په پالیسۍ جوړولوکې دامریکا ولسمشر پوره ازاد نه وي بلکې خامخا سي آی ای او پینټاګون ته مراجعه کوي؛ په پالیسۍ جوړولوکې اصلاً ملي ګټو ته کتل کېږي.

چین اوس په عسکري او اقتصادي ډګرونوکې ډېر په تېزۍ مخ په وړاندې روان دی؛ دچین دتېزو پرمختګونو د مخنیوي لپاره امریکا اړ ده چې په نړۍ کې ښه دوستان او متحدین ولري او په کور دننه یې ولس متحد وي؛ جوبایډن د امریکایي ولس دمتحد کولو او دبهر نړۍ سره دامریکا دروابطو دښه کولو لپاره تر ټولو مناسب سړی و نو ځکه د امریکا قوي شبکو هغه کامیاب کړ.

شنونکي په پوره ډاډ وایې چې د چین په باره کې به دامریکا پالیسۍ کې غټ بدلون رامنځته نه شي بلکې نوی ولسمشر به هم چین دمنزوي کولو اوکمزوري کولو پالیسي تعقیب کړي.

ترکومه چې امریکا کې دمسلمانانو خبره ده نو داسې ویل کېږي چې زیاترو مسلمانانو جوبایډن ته رایې ورکړیدي؛ مسلمان جوبایډن خپل حامي نه بولي خو پدې پوهېږي چې د اسلام او مسلمانانو سره د ټرمپ په پرتله دجوبایډن دښمني کمه ده.

په ۲۰۱۷م کال کې د (پیو ریسرچ سنټر) نومي اداري له لورې په خپور شوي راپورکې راغلي وو چې په امریکا کې دمېشتو مسلمانانو شمېر ۳ ملیونه او ۴۵ زرو ته رسېږي چې په دوئ کې ۴۱ سلنه سپین پوستي، ۲۸ سلنه آسیایي، ۲۰ سلنه افریقایان او ۸ سلنه هسپانویان دي.




اوس پدې هېوادکې له مسیحیانو پس دیهودیانو شمېره زیاته ده خو په راتلونکو ۲۰ کلونوکې به له مسیحیانو نه پس دمسلمانانو تعداد له بل هر چا زیات وي.

په ازادو رسنیوکې دخپرو شویو اعدادو ارقامو له مخې په اوسنو انتخاباتوکې کابو یو ملیون مسلمانانو برخه اخستی وه؛ چې د دوئ له جملې نه ۷۰ سلنې جوبایډن او ۱۷ سلنې یې ټرمپ ته رایې ورکړې وې؛

دا ځل په انتخاباتوکې ۱۱۰مسلمانانو ځانونه کاندیدان کړي وو چې له ۵۰ نه زیات یې بریالي هم شول.

په زړه پورې خو لا دا ده چې د تېرو انتخاباتو په پرتله داځل ټرمپ ته د رایه ورکونکو مسلمانانو فیصدي زیاته شوې وه؛ په ۲۰۱۶م کې ۱۳فیصده مسلمانانو ټرمپ ته رایې ورکړې وې؛ مسلمانان دجمهوري غوښتونکوګوند کړنلاره دمسلمانانو پر وړاندې له تعصب نه ډکه خو د دیموکراتانو کړنلاره بیا د اسلامي اخلاقو او د خانداني اقدارو سره ډېر په ټکرکې ګڼي.



تور پوستي مسلمانان لا له وړاندې د ډیموکراتانو سره وو خو ۸۰ سلنه سپین پوستي جمهوري غوښتونکي ګوند ته رایې ورکولې خو د ۱۱ ستمبر له پېښې نه پس چې بش دمسلمانانو پرضد ډېره ناوړه لهجه وکاروله نو دامریکا د مسلمانانو هم دنورې نړۍ د مسلمانانو په څېر یقین ته دا خبره پرېوته چې دا د اسلام او مسلمانانو پر ضد جنګ دی، دامریکا مسلمانانو د ټولو جمهوري غوښتونکو حمایت نه لاس واخست؛ نو هرو وروستو انتخاباتوکې دمخکنو په پرتله جمهوري غوښتونکو دمسلمانو رایه ورکونکو په شمېرکې کموالی راتللو تر دې چې د ۲۰۱۶م کال په انتخاباتوکې ۸۲ سلنه مسلمانانو خپلې رایې هیلري کلنټن ته ورکړې وې.

امریکا ته دمسلمانانو دراتلو دمخنیوي؛ داسرائیلو نه په پټو سترګو حمایت؛ بیت المقدس ته د امریکا دسفارت انتقال او دمسلمانانو پر ضد دټرمپ نورو اقداماتو د جمهوري غوښتونکو نه د مسلمانانو په حمایت کې نور کموالی هم راوست نو دمسلمانانو قاطع اکثریت خپلې رایې جوبایډن ته ورکړې؛ جوبایډن دانتخاباتي کمپاین پرمهال وعده کړې وه ، چې که چېرې کامیاب شي نو د ټرمپ له لورې د ۷ اسلامي هېوادونو پر اوسېدونکو امریکا ته دراتلو بندیز به لغوه کړي.

جوبایډن پدې اړه پر ټرمپ انتقاد وکړ او ویې ویل: د ۷ اسلامي هېوادونو پر اوسېدونکو امریکا ته دمهاجرت بندیز دواک ناوړه استفاده او د مسلمانانو سره دناوړه سلوک ډېره ستره نښه ده؛ په امریکا کې د مسلمانانو ضد افکارو خپرولو له لارې ولسمشر ټرمپ نړۍ ته څه پیغام ورکول غواړي؟

امریکا باید نړۍ ته خپل طاقت نه بلکې ښه اخلاق ښکاره کړي تر څو دنړۍ قیادت وکړي؛ ولسمشر ټرمپ امریکا ډېره بدنامه کړه.

جوبایډن په خپلو ویناووکې ددې خبرې اظهار هم کړی و چې مسلمانانو ته به د امریکا دنورو اتباعو په څېر مساوي حقوق ولري.

دکډوالو په باره کې هم دجوبایډن دریځ نرم دی او برملا وایې چې د نظام او اقتصاد دښه والي لپاره اړینه ده چې ټولو اتباعو ته په یو نظر وکتل شي؛ که ټرمپ بریالی شوی وای نو د امریکا اقتصاد او نظام ته به ډېر تاوان رسېدلی وای.

لا انتخاباتي نتایج نه وو اعلان شوي چې جوبایډن وویل: بې له شکه چې ولسمشریزو ټاکنوکې زما ګډون د دیموکرات ګوند دغړي په حیث و خو له انتخاب کېدو نه پس به ځه د ټولو امریکایانو ولسمشریم؛ زما حامیان دې دزغم نه کار واخلي؛ په سیاست کې نفرت او دښمني ځای نه لري؛ په امریکا کې دامریکایي ولس دوحدت اسباب ډېر او د ویش اسباب یې کم دي.

جوبایډن دخپل انتخاباتي کمپاین پر مهال وعده کړې وه چې په دټرمپ دواکمنۍ پرمهال په امریکا کې خپره شوې نسل پرستي او د دتور پوستو پر وړاندې د تعصب نه ډک ناوړه سلوک به له منځه وړي.

جوبایډن دخپل بریالیتوب داعلان نه پس داسې متوازنې خبرې وکړې چې د امریکایي ولس ترځنګ یې دنړۍ لپاره هم له ځان سره ښه پیغام درلود؛ هغه پدې پوه دی چې ټرمپ نه یوازې دا چې امریکا یې ویشلې ده بلکې

دامریکا روابط یې هم دنړۍ دزیاترو لویو ځواکونو سره خراب کړیدي.

جوبایډن په خپلې ویناکې وویل: دامریکایې ولس دمتحدکولو پوره هڅه به کوم ځکه چې یواځې د دیموکراتانو نه بلکې دټولې امریکا ولسمشر یم؛ کومو خلکو چې راته رایې ندي راکړي دهغوئ مدني حقوق به هم خوندي وي.

جوبایډن زیاته کړه چې دکرونا پر ضد دنوي طرز العمل جوړولو؛ د اقتصادي بحران ختمولو؛ دنسلي همغږۍ پیداکولو او دچاپیریال پاک ساتلو لپاره به جدي اقدامات وکړي؛

د سخت دریځۍ او نسل پرستۍ دله منځه وړلو لپاره به نوې کړنلاره رامخې ته کړو؛ دنړۍ دسترو هېوادونو سره د ښو روابطو دجوړولو لپاره به نوې بهرنۍ پالیسي جوړه کړو ترڅو دټرمپ له لورې د نړۍ سره د اختلافاتو او ترینګلتیا رامنځته کړای شوې فضا په دوستانه فضا بدله شي.

دټرمپ دناکاموکړنلارو بد نتایج چې د جوبایډن مخې ته دي نو تمه کېږي چې نسبتاً داعتدال لار به خپله کړي؛ دنورو هېوادونو سره د دښمنۍ؛ دسیمو دقبضو او پرهېوادونو دحملو دریځ به ترک کړي؛ پر نړۍ خپلو پرېکړو دتحمیلولو سیاست به پرېږدي؛ په نړۍ کې به دمتقابل احترام داعیه قوي کړي؛ کمزوروملتونو اوهېوادونو ته به نور په کمه سترګه ونه ګوري؛ دمذاکراتو په جریان کې داسلامي امارت سره په کړو ژمنو به وفا وکړي ؛په دوحه کې داسلامي امارت سره رامنځته شوی تاریخي تړون به له ماتېدو وژغوري؛ افغانستان کې دجنګ بندولو او فوځونو ویستلوکړنلاره به تاید او تقویه کړي چې به ورسره افغانستان او نورې نړۍ کې امن را شي او ورسره به امریکا هم دبې ګټې اوبې نتیجې جنګونو خلاصه او په نړۍ کې دلا زیاتې بدنامۍ نه په امن کې شي .

*   *   *

# که خدای کول نور به هر هغه کیږي چې طالب او بادر که ملت یې غواړي

**خیرالله.شنواري**

اول یې د طالبانو امریکا تر مینځ مذاکرات نه منل ، بیا یې د تقلبي ټاکنو په واسطه د سولې د مخنیوي ناکامه هڅه وکړه، بیا چې د دوحې تړون وشو هغه یې نه مانه، تر هغې وروسته یې ددوحې تړون په اساس ۵۰۰۰ بندیان نه خوشې کول، بیا یې د بین الافغاني مذاکراتو لپاره د ټولشموله هیئت په جوړلو کې خنډونه جوړول، خو دا هر څه یې د امریکا په شین وچ زور او کوتک ومنل، اوس یې تازه په طرزالعمل کې درې میاشتې وخت واړاوه، بلاخره یې هیئت ومنله او موافقه یې وکړه چې پخپله رهبري به دا مني، معصوم ستانکزي وایي په دوحه کې قسمونه کول چې زه کابل ته ځم او موافقه به را اخلم، دلته ارګ کې ور ته نازنین ناست دی وایي نه زه موافق نه یم.

په خوله ټوله ورځ د اوربند چیغې وهي او عمل کې بیا دغسې د سولې مخالفت ته وچ کلک ولاړ دی، دا به هم ومني خو تر دې وروسته به نورې څومره بهانې د خپل واک د بقا او د جګړې د تداوم لپاره وکړي، ځینې ساده ګان یې اوس هم د اوربند تشو نارو ته په کتو مړه بولي.

خو دا ارګ غله او قاتلین او ددوئ ډنډورچیان دې پوه وي او په زړه کې پوه هم دي چې نور به هر هغه کیږي چې طالب او بادر که ملت یې غواړي دغلو، اختطاف ګرو او غلامانو بیړه غرقه او کمبله یې په ټولیدو ده .ان شاء الله تعالی

# د څرک دارالإفتاء

## په واوره اودس کیږي، که نه؟

پوښتنه: تېر ژمي دمجاهدینو سره یو ځای پیاده روان وم واوره شوی وه؛ موسم سخت یخ و؛ دماښام دلمانځه وخت رانږدې شو؛ زموږ مشر وویل لا رښا ده اوبه وګورئ! که دچا اودس نه وي چې اودسونه وکړو؛ موږ ۳ ملګرو اودسونه ، نه درلودل؛ اخوا دېخوا مو ډېر وکتل خو اوبه مو ونه موندلې؛ دتیمم اراده مو وکړله خو مشر- مومنع کړو، ویې ویل چې ما له یو عالم نه اورېدلي چې په واوره اودس کېږي؛ موږ واوره راواخسته او د اودس اندامونو یانې مخ، لاسونواو پښوباندې مو ښه راښکله او لمونځ مو ادا کړ نو پوښتنه دا ده چې په واوره اودس کېږي که نه ؟ زموږ لمونځ شوی که را ویې ګرځوو؟

سائل: رفیع الله له وردګو نه

الجواب باسم ملهم الصواب : که مو په لوند لاس د سر مسح کړې وي او په مخ، لاسونو او پښو مو واوره داسې تېره کړې وي چې مو دیادو اندامونو یوځای هم وچ نه وي پاتې شوی او ترې لږ تر لږه دوه دوه څاڅکي څمکې ته څڅېدلي وي نو اودس مو شویدی او که مو اندامونه په واو رې لامده شوي وي خو اوبه بېخي نه وي څڅېدلي نو اودس مو نه دی شوی ؛ د اودس دصحت لپاره د ۳ اندامونو لمدول نه بلکې غَسل یانې وینځل ضروري دي او د غَسل لپاره د اندام نه لږ تر لږه دوه څاڅکي تویدل اړین دي.

لما فی الهندیة: ففی مسئلة الثلج اذا توضأ بـه ان قطر قطرتان فصاعدا یجوز اجماعا وان کان بخلافه فهو علـی قـول ابی حنیفة ومحمد رحمهماالله لایجوز وعلی قول ابی یوسف رحمه الله یجوز، کذا فی الذخیرة و الصحیح قولهما کذا فی المضمرات. والله تعالی اعلم

## د باران په اوبو د اودس جواز

څومیاشتې وړاندې په دوبۍ کې موږ څلور ملګري په لار کې باران ګیر کړو ښه یې لامده کړو اوبه رانه ښه ډېرې وڅڅېدې؛ د لار په سر یو کوچنی مسجد و وروګرځېدلو دمازیګر لمونځ مو ادا کړ بیا ماښام رایاد شو چې موږ خو له مازیګرلمونځ ته اودسونه نه و کړي؛ زموږ یو ملګري وویل: د اودس دصحت لپاره نیت شرط ندی؛ دباران اوبه پاکې دي؛ زموږ له اندامونو ښې پرېمانه څڅېدلي دي اودس موشوی بیا د اودس اړتیا نشته؛ دې ملګري لږ کتابونه ویلي فارغ عالم ندی آیا دده داخبره سمه ده ؟ دباران اوبه چې سړی داسې لوند کړي اودس یې کېږي ؟ سائل: رفیع الله له وردګو نه

الجواب باسم ملهم الصواب

ستا دملګري خبره سمه ده؛ دباران، سیند،نهر یانورې پاکې اوبه چې سړی داسې لوند کړي لکه تا چې وویل اودس یې کېږي؛که ټول بدن یې سم لوندشي خولې اوپوزې ته اوبه واچوي غسل یې هم کېږي ؛ د اودس او غسل دصحت لپاره نیت شرط ندی.

لما فی الدرالمختار: لـو مکـث فـی مـاء جـار اوحـوض کبیر او مطر قدر الوضوء والغسل فقد اکمل السنة.

والله تعالی اعلم. مفتی حسن زوی




**له امنیت شورا څخه د کابل ادارې د مشر د غیرمسئولانه غوښتنو په اړه**

# د اسلامي امارت د ویاند څرګندونې

تیره ورځ د کابل ادارې مشر اشرف غني د ملګرو ملتونو له امنیت شورا څخه غوښتنه وکړه چې د اسلامي امارت په مشرانو باندې ظالمانه بندیزونه دې پرځپل ځای پاتې شي او له هغو څخه د فشار د وسیلې په ډول استفاده وشي.

اسلامي امارت په څلونو واضحه کړې چې د کابل ادارې مشران د سولې اراده او نیت نه لري، تراوسه پورې هم چې په دې برخه کې څه پرمختګونه شوي هغه د بهرنیو جهتونو د فشار نتیجه وه.

د سولې د پروسې په دې حساس وخت کې د اشرف غني له دغو بې مسئولیته غوښتنو څخه څرګندیږي چې هغوی لا هم غواړي د سولې په وړاندې خنډونه ایجاد کړي، پروسه له ناکامۍ سره مخ کړي او د سولې او مذاکراتو د روح پرخلاف دریځ ونیسي.

دا د سولې په وړاندې تنها د اشرف غني کینه ګره اراده نه څرګندوي؛ بلکې له دې څخه وړاندې د کابل ادارې مرستیالانو او نورو متعددو مسئولینو د مذاکراتو د روانې پروسې د سپوتاژ هڅې کړې او د پرمختګونو په وړاندې یې د کورنیو او بهرنیو موانعو د ایجاد کوښښونه کړي دي.

اسلامي امارت دغه راز اظهارات او غوښتنې غندي، هغه د جګړې د دوام او د سولې د پروسې په وړاندې عُقدوې چلند بولي.

د امنیت شورا په ګډون ټوله نړیواله ټولنه باید په افغانستان کې روان حالات دقیق تر غور لاندې ولري، د مشهورو مفسدینو په خبره د دوحې د مهم تړون پرخلاف موانع ایجاد نه کړي؛ بلکې برعکس باید کوښښ وشي چې د سولې د تخریبوونکو او د خپل اقتدار د غځوونکو مخه ونیسي-ترڅو د دوحې توافقنامه څنګه چې ښایي عملي شي، دا هم د افغانانو، هم د امریکا او هم د نړیوالې ټولنې په ګټه ده.

ذبیح الله مجاهد د اسلامي امارت ویندوی

۱۴۴۲/۴/۶هـ ق

۱۳۹۹/۹/۱هـ ش ــ ۲۰۲۰/۱۱/۲۱م

# Srak

## له خزانه تر بهاره ځو!

عشقه ليوني دې کړو تر داره ځو
عشقه ستا لپاره تر انګاره ځو

ځو دلمبو غيرته پروانه کوو
عشقه پر دې لاره تر ننګاره ځو

نه لړو ستړياوې چې مزل کوو
عشقه ستاپه مينه تر باداره ځو

خاندو ښه په مينه خپل اجل لره
عشقه نور له دغه فاني ښاره ځو

پاک رب مو قبولي دعاګانې کړي
عشقه له خزانه تر بهاره ځو

ورمو کړي هيواد لره دتن ويني
عشقه موږ له شپو ترسپين سهاره ځو

رب که شهيدان کړو ستاپه لاره کې
عشقه (صابر) وايم تر دلداره ځو

(صابر فاريابي)